


**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب، د ښوونکو د روزنې
او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښتو

## دریم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ . ش.**

# د کتاب د تألیف، څېړنې او تدقیق کمیټې

## لیکوالان:

١. د سرمؤلف مرستیال امین الله نژند د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنت علمي غړی.
٢. مؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست رئیس.

## تایید او مطالعه:

### ملي شورا

- د ولسي او مشرانو جرگو د دیني چارو، پوهنې او لوړو زده کړو د کمیسیونونو غړي.

## د څېړنې او تدقیق کمېټې:

### کابل پوهنتون:

- پوهندوی محمد رفیق رفیق د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د پښتو دیپارتمنت استاد.

### علومو اکاډمي:

- سر څېړونکی عبدالواجد واجد د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز رئیس.

### د پوهنې وزارت

- داکتر احسان الله ناشر د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست علمي غړی.
- الحاج عبدالاحد غزنیوال د پوهنې وزارت د علمي شورا کار کوونکی.
- د سر مؤلف مرستیال سید محمود کارگر د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنټ علمي او مسلکي غړی.
- د مؤلف مرستیاله فروزان خاموش د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارتمنت علمي او مسلکي غړې.

## د کتاب ایډیټ کوونکې:

- د مؤلف مرستیال محمد عزیز تحریک د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو د پیارتمنټ آمر.
- د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست علمي غړی.
- د مؤلف مرستیال فیض الله فائیز د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د ریسرچ دیپارتمنت علمي غړی.

## انځورکوونکي:

نفیسه پوپلزۍ او حفیظ الله منیر.

## د محتویاتو، دینی، فرهنگي او سیاسي برخو د څېړنې او کره کتنې کمېټې:

- ډاکتر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
- دوکتور محمد یوسف نیازي د پوهنې وزارت سلاکار.

## د څېړنې او تدقیق د څارنې کمیټه:

- دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
- دکتور شېر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
- د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**کمپوز او ډیزاین:** نصرالدین (ناصر) او حمید الله (غفاري)



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**ګرانو ښوونکو او زده کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي ګټورې موضوعګانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه ګرځیدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده‌کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې ګډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده‌کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونډ مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، د وطن دوستی د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظریو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو، او نورو ملګرو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

## د کتاب لړلیک

لومړی لوست

# قرآن کریم



**موخه**: د متن لوستل، لیکل، د قرآن کریم په لارښوونو بانديې عمل کول او د نوو کلمو په معنا پوهیدل دي.

## پوښتنې:

١. قرآن کریم پر کوم پیغمبر نازل شوی دی؟
٢. آیا ویلی شئ چې قرآن کریم څو آیتونه، څو منزلونه او څو سورې لري؟
٣.د قرآن کریم د تلاوت نه مخکې باید کوم ټکي په پام کې ونیول شي؟

**قرآن کریم د خدای (ج) کتاب دی او د مسلمانانو د لارښوونې لپاره پر حضرت محمد (ص) نازل شوی دی.**

**د قرآن کریم تلاوت او لوستل ځانګړی ثواب لري.**

**څوک چې قرآن کریم تلاوت کوي او یايې په لاس کې نیسي باید پــه اوداسه وي. ښه زده کوونکي همېشه د قرآن کریم تلاوت کوي، پــر لارښوونو يې عمل کوي او دهغه ادب ساتي.**

لغتونه او معناګانې:

| نازل : رالېږل شوی | ځانګړی : خاص |
|---|---|
| تلاوت : لوستل | درناوی : احترام |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره دقرآن کریم لوست په لوړ آواز ولولي.
- د لانـــدې کلمو سمه معنا د درکړل شوي چوکاټ له کلمو څخه وټاکئ او بیا یې د کلمو تر څنګه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۱.تلاوت ________
۲.ځانګړي ________
۳.همېشه ________

تل، خاص،
دقرآن کریم لوستل

د لاندې کلمو مفرد شکل په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| جمع | مفرد |
|---|---|
| آیتونه | آیت |
| مسلمانان | |
| سورې | |
| ادبونه | |

## کور نۍ دنده:

- لاندې جملو کې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ!
- (قرآن کریم،حضرت محمد (ص)، خدای(ج) )
- قرآنکریم د__________ کتاب دی او د مسلمانانو د لاربسوونې لپاره پر ______نازل شوی دی.
- د ______ تلاوت او لوستل ځانګړي ادبونه لري.

دوهم لوست

# د حضرت محمد(ص) کوچنیوالی



**موخه:** د متن لوستل، لیکل، د نوو کلمو په معناوو پوهېدل، د حضرت محمد(ص) د لوړ شخصیت پېژندل او د هغه په کړو وړو عمل کول دي.

## پو ښتني:

۱. تاسې د حضرت محمد (ص) په هکله څه ویلی شئ، خپل معلومات نورو ته وړاندې کړئ!

۲. په پورتني عکس کې کوم زیارت وینئ؟

**زموږ پیغمبر حضرت محمد(ص) له کوچنیوالي څخه د ښو او نیکو اخلاقو څښتن و. حضرت محمد (ص) به د خپلو همزولو له کورنیو سره په ډېر درناوي چلند کاوه. له دې کبله دده نیکه (عبدالمطلب) ورته تل دځوی خطاب کاوه او په هغه باندې ډېر ګران و. همدا رنګه د ده تره (ابوطالب) هم په ده باندې ډېر پام کاوه او د خپلو اولادونو په شان ورته ګران و. حضرت محمد(ص) هم د مشرانو درناوی او عزت کاوه او له هغوی سره یې دکور او کورنه بهر په کارونو کې مرسته کوله، ځکه هغوی ته د زړه له کومي ګران و. که څه هم دی یتیم و خو دخپل نیکه او تره په شفقت او مهربانۍ کې یې د پلا رمینه تر لاسه کړې وه.**

**لغتونه او معنا ګانې:**

| | |
|---|---|
| پیغمبر : | پیغام وړونکی |
| بې وزله : | غریب |
| جامع : | یو نوم دی |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- له یو بل سره متن ولولئ.
- له تورو څخه کلمې جوړې او د چوکاټ په خالي ځایونو کې یې پــه خپلــو کتابچو کې ولیکئ.

ک+و+چ+ن+ي+و+ا + ل + ی = کوچنیوالی

هـ+م+ز+و+ل+و= 

ج+ ا +م+ ع =

هـ+ل+ک =

پ+ ا+ ک =

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي د ې په خپله خوښه د لوست درې کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دریم لوست

# حضرت ابوبکر صدیق(رض)

**موخه:** د متن لوستل، لیکل، دحضرت ابوبکر صدیق (رض) دلوړ شخصیت پېژنــدل او د هغه په کړووړو عمل کول او دنوو کلمو په معنا وپوهېدل دي.

**پو ښــتنې:**

١. آیا د حضرت ابوبکر صدیق (رض) په هکله څه ویلی شئ؟

٢. د حضرت ابوبکر صدیق (رض) اصلي نوم څه دی؟

٣. حضرت ابوبکر صــدیق (رض) د حــضرت محمد(ص) څویم یار دی؟



**حضرت ابوبکر صدیق (رض) د حضرت محمد (ص) لومړی یــار و. اصلي نوم یې عبدالله، د پلار نوم یې (عثمان) او په ابو قحافه سره یې شهرت درلود.**

**د حضرت محمد(ص) له خوا ورته د صدیق لقب ورکړل شوی و. ابــوبکر صدیق(رض) دینداره او د ښو کړووړو خاوند و. تل به یې له خلکو سره پــه ورین تندي خبرې کولې. په خپلو دندو کې وفا دار او رښتینی و.ده خپل مال او شتمني د خدای (ج) په لاره کې ورکوله. او له بې وزلو سره یې د خپــل توان په اندازې مرسته کوله. حضرت ابوبکر صدیق(رض) له کوچنیوالي څخه د حضرت محمد(ص) سره مینه درلوده، ناسته او ولاړه به یې ورسره کوله. کله چې حضرت محمد(ص) په پیغمبری مبعوث شو، نو حــضرت ابــوبکر**

صدیق(رض) لومړی سړی و، چې په حضرت محمد (ص) یې ایمان راوړ او د اسلام په مبارک دین مشرف شو. کله چې حضرت محمد(ص) لــه مکــې معظمې نه مدینې منورې ته هجرت کاوه دی یې د لارې ملګری و او همــدا راز په ټولو غزاګانو کې ور سره و. کوم وخت چې حضرت محمد(ص) لــه دې نړۍ څخه رحلت وکړ، نو حضرت ابوبکر صدیق (رض) د مــسلمانانو خلیفه وټاکل شو. دوه کاله او شپږ میاشتې یې خلافت وکړ او د ٦٣ کالو په عمر یې له دې دنیا څخه رحلت وکړ.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- یو د بل په مرسته د لوست جملې په کرار سره ولــولئ. دحــضرت ابــوبکر صدیق(رض) د کړووړو په هکله له یو بل سره خبرې وکړئ.
- د لاندې کلمو سمه معنا له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو تر څنګ یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| رښتینی، عزتمند، پراخ، بېلتون، غریب، لېږدېدنه |
| --- |

- صدیق ________ - ورین ________ - هجرت ______
- مشرف ________ - بېوزله ________ مبعوث ______

لاندې پوښتنو ته په شفاهي توګه ځوابونه ورکړئ.

١. د حضرت ابوبکر صدیق (رض) د پلار نوم څه و او په څه باندې مشهور و؟

٢. د حضرت محمد (ص) لومړی یار څوک و؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په سمو کلمو سره ډک او پــه خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

١. حضرت ابوبکر صدیق (رض) د حضرت محمد (ص) لومړی ______ و.

٢. ابوبکر صدیق (رض) دینداره او د ________ خاوند و.

څلورم لوست

# د ښوونکي مقام

**موخه:** د ښوونکي په درناوي او دهغه د دندې په ارزښت پوهېدل او د دې متن سم لوستل، ليکل او د نوو کلمو په معنا پوهېدل دي.

## پو ښتنې

۱. تاسې ليک او لوست له چا نه زده کوئ؟
۲. ښوونکی پر مورِ باندې ولې د مور او پلار په شان حق لري؟
۳. تاسې د خپل ښوونکي ورځ څه ډول لمانځئ؟



**هغه څوک چې مورِ تـه ليـک او لوست را زده کوي، ښوونکی نومېږي. ښوونکی مورِ ته هـره ورځ نوې معلومات راکوي. مورِ د نوي او سوکاله ژوند لپـاره روزي، نو ښوونکی څکه د مور او پلار په شان په مورِ باندې حق لري. بايد درناوی يې وکړو او په لارښوونو يې عمل وکړو. د ښـوونکي د مقام د درناوي په خاطر په ځينو هېوادونو کې يوه ورځ د ښوونکي د ورځې په نوم لمانځل کېږي. همدارنګه زمورِ په هېواد کې هم يوه ورځ د ښوونکي د ورځې په نامه شته، چې د زده کوونکو له خوا په خوشحالۍ اود ترانو په ويلو لمانځل کېږي. زده کوونکي د خپلو ښوونکو په ګډون مېلې جوړوي او په خوښۍ سره دغه ورځ تېروي.**

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| مقام : | منزلت |
| درناوی : | احترام |
| هېواد : | وطن |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- یو د بل په مرسته د متن جملې ولولئ؟
- د لاندې کلمو معناوې په چوکاټ کې له لیکل شوو کلمو څخه وټاکئ او بیا یې د کلمو تر څنګ په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

سوکاله:__________

درناوی:__________

ښوونکی:__________

| احترام |
|---|
| آرامه |
| استاد |

- زده کوونکي دې د متن د څو جملو املاء یو بل ته ووایي.

## کورنۍ دنده:

- ګرانو زده کوونکو! د ښوونکي، لیک، لوست، درناوی کلمې لومړی په لنډوجملوکې وکاروئ.او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

پنځم لوست

# ښه زده کوونکي



**موخه:** د ښو زده کوونکو په ښو صفتونو پوهېدل. د هم ډوله ( مترادفو ) کلمو پېژندل او دهغو سمه کارونه او د دې شعر سم لوستل او سم لیکل دي.

## پو ښتنې:




۱. مورِ چا ته ښه زده کوونکی ویلی شو؟
۲. تاسې چې ښه زده کوونکي یآست څه باید وکړئ؟
۳. ستاسو له نظره ښه زده کوونکی باید کوم کارونه تر سره کړي؟

د مکتب ښه شاګــردان یـــو | د هېـــواد ښـــکلي ګلان یو
په شوق وایـــو خپــل درسونه | مورِ د پــوهې مــینان یو
مــدام پــام پــه کتابـــو کړو | د کـــتاب طـــرفـــداران یو
د لـــویانو کـــړو نـــمانـــځنه | د عالي خوي خــاوندان یو
رښتـــیا وایـــو رښتیـــا اورو | په رښـــتیا پســـې روان یو
مـــهال وېش سره سم دروړمو | همېشه وخـــت شناسان یو
ازمـــویني نـــه ځنګ نه کـــړو | ښـــه ډاډه په امتـــحان یو
هېڅ وخت چا سره جنګ نه کړو | یو د بل انـــــــډیوالان یو

د نژند یو مورِ مــلګـــري
مینه ناک د خپل عرفان یو

محمد عثمان نژند

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د ښو زده کوونکو په اړه له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا دې د هرې ډلې یو تن زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او د ښه زده کوونکي د صفتونو پــه هکله دې نورو ته معلومات ورکړي.
- په لوستل شوي شعر کې هم وزنه کلمې پیدا کړئ لکه شاګردان،ګلان او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.
- په لاندې چوکاټ کې مترادفې کلمې پیدا کړئ او د کرښې په واسطه یې پــه خپلو کتابچو کې سره ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| مکتب | امتحان |
| شاګردان | همېشه |
| ښکلې | زده کوونکي |
| مینه | وطن |
| هېواد | ښایسته |
| مدام | محبت |
| ازموینې | زحمت |
| زیار | ښوونځی |

## کورنۍ دنده:

- لاندې نیمګړې بیتونه د چوکاټ په مناسبو نیم بیتو سره بشپړ. او په کتابچو کې یې ولیکئ.

| |
|---|
| موږ د پوهې مینان یو |
| د هېواد ښکلي ګلان یو |
| د کتاب طرفداران یو |

- د مکتب ښه شاګردان یو ______________
- په شوق وایو خپل درسونه ______________
- مدام پام په کتابو کړو ______________

---

**یادونه:** مترادفې کلمې: هغه کلمې دي چې په معنا کې یو شی وي، په ښه او شکل کې سره توپیر ولري.

شپږم لوست

# ټوکه او کیسې

**موخه:** چې زده کوونکي د ټوکې او کیسې په معنا او مطلب پوه شي. ټوکې او کیسې سمې ولولي او ويې ليکي.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر ټوکه او کیسې څه ته وايي؟
۲. تاسو کله له چا څخه ټوکې او کیسې اورېدلي دي؟
۳. څوک کولی شي چې يوه ټوکه او يا کیسې ووايي؟

**يو مسافر سړی په ژمي کې له يوه کلي څخه تېرېده. د کلي سپي پرې را ټول شول. کله چې هغه تيږې ته لاس کړ، تيږه په ځمکه کې کلکه نښتې وه مسافر په زوره نارې کړې: دا څنګه کلی دی، چې سپي يې خوشې کړي او تيږې يې تړلي دي؟**

## کیسې

نه ګيـــدړ دی نه زمــری     هسې ښـــکاري لـــکه سپی
د پسو او خرو دښمن دی     کوم حيوان د دې وطن دی

ووايئ دا څه شی دی؟ ( ) ( ل، ی ، و، هــ )




لغتونه او معناګانې:

| ټوکه : | خندا لرونکې خبرې يا فکاهي |
| --- | --- |
| نارې : | غږونه |

يادونه: کیسې د يوې پوښتنې او غوښتنې په توګه په شعر او نثر کې راوړل کېږي او مقابل لوری ځواب وايي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- یو د بل په مرسته د لوست متن په چوپتیا سره ولولئ!
- د مثال په ډول دې څو تنه زده کوونکي یوه یوه کیسه په ټولګي کې په لوړ اواز ولولي.
- په خپلو ډلوکې لاندې پوښتنو ته په شفاهي توګه ځوابونه ووایئ!

۱. مسافر له کوم ځایه تېرېده؟
۲. د کلي سپي ولې پر مسافر راټول شول؟
۳. مسافر څه شي ته لاس تیټ کړ؟
۴. د کلي په هکله یې د څه شي شکایت وکړ؟

- د لاندې کلمو لپاره دوه معنا ګانې درکړل شوې دي تاسې د کلمو سمه معنا په ګوته کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

| | | |
|---|---|---|
| الف: تیږې | ډبرې | لوټې |
| ب: ترڅنګ | خواته | مخامخ |
| ج: نارې | غږونه | خبرې |

## کورنۍ دنده:

- د ټوکې او کیسې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط سره ولیکئ. او هم یوه ټوکه یا یوه کیسه له خپلې کورنۍ څخه زده کړئ.

# راځئ چې کتاب ولولو

**موخه:** زده کوونکي وپوهیږي چې له هر څه نه کتاب ته زیاته اړتیا لرو. همدا رنګه د کتاب په ارزښت پوهېدل، په لارښوونو يې عمل کول او ددې متن سم لوستل او سم ليکل دي.

## پو ښتنې:

١. کوم ډول کتابونه مو خوښېږي؟
٢. پرته له درسي کتابونو نور کوم کتابونه لولئ؟
٣. ستا سو له نظره د کتاب لوستل څه ګټه لري؟



کتاب ډېر ارزښت ناک شی دی. ځکه چې له لوستلو یې پوهه زده کوو. تاسي پوهېږئ، چې پیسې آخرخلاصېږي. خو د کتاب ګټې د ژوند تر پای پورې نه خلاصېږي. دوستانو! کتاب ولولئ! د کتاب هر توری، هره کلمه او هره جمله د مرغلرو په څېر ارزښت لري.

کتاب موږ ته ګټورې لارښوونې کوي او د ژوند له رازونو څخه مو خبروي.د هر څه په هکله معلومات راکوي. کتاب زموږ فکر په کار اچوي او لوستل یې د فکري ودې او پر مختګ سبب ګرځي، په یوازيتوب کې مو ډېر ښه ملګری هم دی. د کتاب کلمې او جملې باید په ډېر غور سره ولولو. په معنا يې وپوهیږو، پند ترې واخلو. په لارښوونو یې عمل وکړو. نو راځئ! چې کتاب ولولو، چې ګټورو لارښوونو او زده کړو په وسیله یې خپل ځان، کورنۍ او د خپل ګران هېواد خلکو ته خدمت وکړو.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لوست متن د یو بل په مرسته ولولئ.
- لاندې نیمګړې جملې په قوسونوکې دلیکل شویو مناسبو کلمو له مخې بشپړې کړئ.

– کتاب ډېر ارزښت ناک شی ________. (دی، ده)

– ځکه چې په لوستلو يې ________ زده کوو. (لوست، پوهه)

– دکتاب هر توری، هره کلمه او هره جمله د مرغلرو په څېر ارزښت ________. (لري، ورکوي)

## کورنۍ دنده:

- په خپلو کتابچو کې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ.
- کتاب موږ ___ لارښوونه کوي.
- کتاب زموږ فکر په کار________.
- د کتاب کلمې او جملې باید په ډېر غور سره________.

اتم لوست

# د نی قلم وایي



**موخه:** د قلم په ارزښت، ګټو او اړتیاو وپوهېدل او د دې لوست سم لوستل او لیکل دي.

## پوښتنې:

۱. تاسې خپلې لیکنې په څه شي کوئ؟

۲. څو ډوله قلمونه پېژنئ نومونه یې واخلئ؟

**د نی قلم وایي: زه په بېدیا او دښـــتو کې زرغونېږم. کله چې انسان وپېژندم د قلم په نوم یې یاد کړم. زه د پوهانو، عالمانو او ستاسو زده کوونکو د لیکلو وسیله یم. له یو لاس څخه بل لاس ته په درناوي ګرځم. ټول ژوند مې پــه محبت او عزت کې دی ځکه د پوهې پلویان خپل مطلب، ویناوې او غوښتنې زما په ژبه بیانوي.**

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| بېدیا : | دښتې |
| پوهان : | عالمان |
| عزت : | قدر |
| درمل: | دوا |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ او بیا له یو بل سره د متن په مطلب خبرې وکړئ. وروسته دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د قلم د ګټو په هکله دې خپل معلومات نوروته وړاندې کړي.
- له لاندې ګډوډو کلمو څخه په خپلو کتابچو کې بشپړه جمله جوړه کړئ.

– وسیله یم، د لیکلو، او، ستاسو، زه، د پوهانو، عالمانو، زده کوونکو

- لاندې کلمې په څپو واړوئ!

قلم:_ق_لم_　　عزت:______　　لیکلو:________

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لوستل شوی لوست په ښکلي خط سره ولیکي.

نهم لوست

# د پوهولو او را پوهولو لارې چارې

**موخه:** زده کوونکي د پوهولو او را پوهولو د مهارتونو په ارزښت او لارو چارو وپوهېږي اومتن سم ولولي او سم يې وليکي.

## پو ښتنې:

۱. ستاسو په فکر پوهول او را پوهول څه شي ته وايي؟ خبرې پرې وکړئ!

۲. تاسې خپل مطلب نورو ته څرنګه ورپوهولی شئ؟

**پوهونه او را پوهونه په بېلابېلو لارو چارو سره سرته رسېږي.**

**د دې لپاره چې د دوو انسانانو ترمنځ خبرې اترې په سمه توګه تر سره شي، نو بايد د مفاهمې له بېلابېلو لارو چارو څخه کار واخيستل شي. مفاهمـــه د ستونزو د حل يوازينۍ لاره ده. د پوهولو او را پوهولو مهارتونه په شـــفاهي ډول، د تليفون او انټرنېټ په وسيله او همدا رنګه د ليک د ډولونو په توګه تر سره کېږي.**

**د پوهولو او را پوهولو د اوسنيو وسايلو په وسيله د انسانانو ترمنځ اړيکـــې ډېرې نژدې شوي او په ډېرو لرو هېوادونو او ځايونو کې انسانان کولی شي چې د اړتيا په وخت کې خپل مطلب او پيغام وليکي او يو بل ته يې واستوي.**

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| مفاهمه : | يو تربله پوهول را پوهول |
| اړتيا : | ضرورت |
| اړوند : | مربوط |
| اړيکې : | رابطې |



## دزده کوونکو فعالیتونه :

- د لوست متن یو د بل په مرسته ولولئ. او بیا د مفاهمې د ډولونو په هکله له یو بل سره خبرې وکړئ.
- په خپلو خبرو کې د مفاهمې ګټې بیان کړئ.

- د لاندې جملو تش ځایونه په قوسونو کې د مناسبو کلمو له مخې پــه خپلــو کتابچو کې ډک کړئ!

۱. پوهونه او را پوهونه په بېلابېلو ______ سره سرته رسېږي.
(لارو،طریقو)

۲. ددې لپاره چې د دوو انسانانو ترمنځ مفاهمه په سمه توګه پیل شي، نو باید د لاندې بېلابېلو ____________ څخه کار واخیستل شي.
(لاروچارو، ډولونه)

- لاندې کلمو ته پام وکړئ او په تورو یې واړوئ!

الف: پ+ و+ ه + و+ن+ه = پوهونه ب: خـــ+ ب+ ر+ي= خبرې

مفاهمه_ انټرنېټ_ تلیفون_ اړتیا

## کورنۍ دنده:

- ګرانو زده کوونکو! د لوستل شوي لوست له مخې څو کلمې وټاکئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې په څپو واړوئ.
- څو ډوله مفاهمه مو وپېژنده؟ ځواب یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ناروغۍ رقعه

**موخه:** چې زده کوونکي د ناروغۍ رقعه ولولي، ويې ليکي او د ناروغۍ په وخت کې خپل ښوونځي ته يوه رقعه واستوي. املاء، انشاء او ليک دود زده کړي.

## پوښتنې

۱. که چېرې څوک ناروغه شي ښوونځي ته څنګه خبر ورکوي؟
۲. ولې مورږ د ناروغۍ رقعه د ښوونځي ادارې ته استوو؟

**د ميرويس نيکه د ښوونځي ښاغلی سر ښوونکی صاحب!**

**زه بريالی د خوشحال زوی، د دريم ټولګي زده کوونکی د ناروغۍ له امله ښوونځي ته د زده کړې لپاره درتلی نه شم. په ډېر درناوي له تاسو څخه هيله لرم چې ما د سوبتيا په کتاب کې ناسوب ونه ګڼئ.**

**په درناوي**

**نېټه / /**

**د زده کوونکي لاسليک ( )**

**لغتونه او معناګانې:**

| | | |
|---|---|---|
| سوبتيا | : | حاضري |
| ناسوب | : | غيرحاضر |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- د ناروغۍ رقعه يو له بل سره ولولئ!
- زده کوونکي دې يو بل ته د ناروغۍ رقعه املا ووايي.
- د ناروغۍ رقعه له ياده زده کړئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

## کورنۍ دنده:

- يوه د ناروغۍ رقعه په خپل نوم په خپلو کتابچو کې وليکئ!

يوولسم لوست

# ضروري رقعه

**موخه:** د ضروري رقعې د ليکنې په هدف او مطلب، وپوهېږي. همدارنګه له يـاده يـې وليکي

## پوښتنې:

۱. تاسو د کوم ضرورى کار په پيدا کېدو سره خپل ښوونځي ته څنګه خبر ورکوئ؟
۲. ولې مور د ضرورى رقعه د ښوونځي ادارې ته استوو؟

**د رحمان بابا د ښوونځي ښاغلی سرښوونکی صاحب!**

**زه سورګل د محمد ګل زوی، د دريم ټولګي زده کوونکی نن د يوه ضروري کار له امله، ښوونځي ته د زده کړې لپاره نه شم درتلی. په ډېر درناوي لـه تاسو څخه هيله لرم، چې د سوبتيا په کتاب کې ناسوب نه شم.**

**په درناوی**

**نېټه / /**

**د زده کوونکي لاسليک ( )**

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| اړتيا : | ضرورت |
| هيله : | اميد |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې له يو بل سره ضروري رقعه ولولي.
- يو بل ته د ضرورى رقعه املا وواياست!
- ضروري رقعه له يادو زده کړئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ!

## کورنۍ دنده:

– په خپلو کتابچو کې په خپل نوم ضروري رقعه وليکئ.

# د ماشومانو لوبې



**موخه**: زده کوونکي دې دخپل هېواد ډول ډول لوبې وپېژني. د هغو په ګټو دې پوه شــي او د لوست متن دې سم ولولي او سم يې وليکي.

**پو ښـتنې**:

١. په انځورونو کې څه وينئ؟ خبرې پرې وکړئ!
٢. څو ډوله لوبې مو زده دي؟ نومونه يې واخلئ!
٣. لوبې څه ګټې لري؟



**ماشومان ډول، ډول لوبې کوي .هغه لوبې، چې ماشومان يې په خپل منځ کې کوي زموږ وطنـــي لوبې دي.دغه لوبې د ګاډۍ چلولو، پټ پټاني يا پټونې، پهلواني، چمبه وهلو، نانځکې کولو، جفت او تاق، لينده ويشتلو، بنګړي مات، ټــاـل اچولـــو، اکوبکو او داسې نورو لوبو څخه عبارت دي. هغه لوبې چې په بدني ډول تر سره کېږي د ماشومانو بدني پياوړتيا ته ګټه رسوي. او هغه لوبې چې په ذهني ډول تر سره کېږي ماشوم دلوبو کولو مهارتونوته هڅوي او روزل کېږي چې په خپله ټولنه کې خپل رول وپېژني، د مثال په توګه: د نانځکو کولو لوبـــه، زياتره نجونې په خپل منځ کې تر سره کوي، خو کله ښايي واړه هلکان هم په خپلو لوبو کې ګډون ته راوبولي. دوی سيوري ته په يوه ګوښه ځای کې کښېني اوکوره کې جوړوي. وړې توشکې او فرشونه پکې اواروي. بالښتونه يې غاړو ته ږدي او نانځکې پکې کښنوي.د لوبو نور شيان هم د کور په مناسبو ځايونو کې ځای په ځای کوي. نجونې خپلې ډلې په دوو برخو وېشي او په خپل منځ کې د دوو کورنيو په څېر چلند اوتګ راتګ کوي. يوه ډله له بلې**

**نه د يوې نانځكې غوښتنه كوي، بيا يې واده جوړوي او ترديې پورې چې د ناوې د ورلو دود تر سره كوي. دا لوبه د ماشومانو لپاره ډېره په زړه پورې ده.ځكه چې ماشومان د كورني ژوند لپاره روزل كېږي او خپل رول په ټولنه كې پېژني.**

مآخذ: افغان اساسي قابليتونه، پښتو لپاره د زده كړې لازمي مواد.

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| چمبه : | دايره |
| نانځكې : | ګوډۍ، ناوكۍ |
| پياوړى : | قوي |
| لوبې : | ساعت تېرې |
| دود : | رسم او رواج |

## د زده كوونكو فعاليتونه:

- متن په روانه توګه ولولئ او بيا د (چمبه، نانځكې، لوبې) كلمې په ځېر واوروئ.
- ووايئ چې د لوست اصلي مطلب څه شى دى؟ سم ځواب ور په ګوته كړئ.

او بيا يې په خپلو كتابچو كې وليكئ.

الف: د افغاني ماشومانو وطني لوبې دي.

ب: د نانځكې لوبه ده.

ج: لوبې او ساعت تېرې دي.

- د (چمبه، لوبې، نانځكې) كلمې په لنډو جملو كې وكاروئ.

## كورنۍ دنده:

- په خپلو كتابچو كې د لاندې جملو تش ځايونه د چوكاټ په مناسبو كلمو سره ډک كړئ.

| |
|---|
| فرشونه، لوبه، كوره كى، توشكې، هلكان |

دا ________ زياتره نجونې په خپل منځ كې تر سره كوي خو كله كله ښايي واړه ________هم خپلو لوبو ته را وبولي. دوى سيورې ته په يوه ګوښه ځاى كې كېنېني او ________ جوړوي. ورې ________ او ________ په كې اواروي بالښتونه يې غاړو ته ږدي او نانځكې پكې كېنوي.

# بریالی



**موخه:** دکیسې، لوستل، لیکل، د ژوند دکړاوونو او سختیو په وړاندې د پیاوړي عزم، د صبر درلودل او د نا امیدۍ څخه د ځان ژغورل دي.

**پوښتنې:**

۱. تاسي د یوې داسې پېښې کیسه وکړئ چې ځوریدونکې او خپله مو لېدلې وي؟

۲.که چیرې یو معیوب ووینو دخپل وس په اندازې باید ور سره څه وکړو؟

یوې کورنۍ کې یو هلک اوسېده، چې بریالی نومېده. د بریالي کورنۍ ډېره بېوزلې وه. دده کونډې مور به د ګنډلو له لارې خپلو ماشومانو ته ډوډۍ پیدا کوله. د بریالي ماما،اکبر هم دخپلې خور له ستونزو څخه ډېر ځورېده، او له ځان سره به یې ویل:«که د شپلې ځمکه خپلې خورته ورکړم ....؟» اکبر د شپلې ځمکه خپلې خور ته ورکړه بریالی دخپل ماما په دې کار ډېرخوشحاله شو. بریالی او زمری چې سره ورونه وو یوه ورځ دواړه د یوې او غوآیانو د پیداکولو لپاره د ناظر کور ته ورغلل. ناظر د جبار خان غوایان دوی ته امانت ورکړل.دواړه ورونه د شپلې د ځمکې په لور روان شول.بریالی او زمری په لاره روان وو چې خیر محمد اکا یې په مخه ورغی او هغوی ته یې داسې وویل :« په دې لاره مه ځئ چې د ماین خطر په کې دی.» بریالي د خیر محمد اکا خبره ونه منله زمري هم د اکا خبره بریالي ته

تکرار کړه، خو بریالی په قهر شو او زمری یې کورته ولېږه. بریالی یوازې د شپلې د ځمکې خواته لاړ. هلته لانه ورسیدلی چې د ماین د چاودنې سره ټپي شو د کلي خلک چې خبر شول. ټول د بریالي مرستې ته را ورسېدل او هغه یې روغتون ته بوت. ډېر سخت ټپي شوی و.

ډاکتر وویل:« چې ده ته وینه په کار ده ». هیچا هغه ته وینه نه ورکوله.

د بریالي مور حېرانه وه چې څه وکړي؟ کریم چې د بریالي له نږدې خپلوانو څخه و، بریالي ته یې خپله وینه ورکړه او له مرګ څخه وژغورل شو خو یوه پښه یې پرې شوه. د پښې پرې کیدو بریالی له ژوند څخه نا هیلي کړ.د هغه نااميدۍ ټوله کورنۍ خواشینې کړې وه. مور یې ماما ته وویل:« چې وروره! بریالی به له دې نا امیدۍ څخه وژغورل شي؟» هغه به ورته ډاډ ورکاوه. یوه ورځ یې ماما بریالی له معیوبینو سره د مرستي مرکز ته بوت او مصنوعي پښه یې ورته جوړه کړله. هغه اوس کولی شي چې په لاره وګرځي. خو سره لــه دې هم ځوریده او خپل ځان ورته نیمګړی ښکارېده. دی له وزګارتیا څخه ډېر زړه تنګی شوی و. زمري ورور یې ، دی له یوه ګنډونکي سره شــاګرد کړ. له څه مودې وروسته بریالي ګنډل زده کړل. چې له دغې دندې سره یې بیا په خوشحالۍ خپل ژوند کاوه.

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| بېوزلي : | غریبي |
| بیړه : | چابکي |
| مرستې : | کومکونه |
| ټپي : | زخمي یا ژوبل |
| خواشینی : | خپه |
| شپلۍ : | دخوړ هغه ځای چې سېلابونه پکې تېرېږي |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ!

۱. د بریالي کورنۍ له کومې لارې څخه ژوند کاوه؟

۲. اکبر څوک و او ولې یې د بریالي له کورنۍ سره مرسته وکړه؟

۳. خیر محمد اکا زمري او بریالي ته څه وویل؟

۴. د شیلې څمکې سره نژدې څه پېښه وشوه؟

۵. د ماین چاودنې له پېښې وروسته بریالی ولې ځورېده؟

٦. بریالي څه شی زده کړل؟

۷. بریالی اوس څه کار کوي؟

- زده کوونکي دې د کیسې د مطلب په هکله له یو بل سره خبرې وکړي او بیا دې د هرې ډلې یو تن راشي او د بریالي کیسه دې په لنډه توګه نورو ته ووایي.

دا لاندې کلمې او معناګانې په کتابچو کې ولیکئ او په جملو کې یې وکاروئ.

الف: عیبي، معیوب، عیب لرونکی

ب:ستونزې، مشکلات

ج: بېړه، عجله

د: ټپي، زخمي

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

الف: دا هلک معیوب ______. (دی، دي)

ب:هغه هلکان معیوب______. (دي، دی)

ج: دا نجلۍ معیوبه________. (ده، دی)

خوارلسم لوست

# د مور او پلار حقونه



**موخه**: دپلار او مورپه حقونو پوهېدل، له هغوی سره نیکي کول، له مفردو کلمو څخــه د جمعو کلمو جوړول او د متن سم لوستل او سم لیکل دي.

**پو ښــتنې**:

۱. مورې ولې د مور او پلار خدمت کوو؟

۲. تاسې له مور او پلار سره په کارونو کې څه ډول مرسته کوئ؟

د مور او پلار کلمې ډېرې خوږې دي. د مور او پلار درناوی او لــه دوی سره نیکي کول، د مسلمانۍ له ښو اخلاقو څخه دي. خدای(ج) فرمايلي دي: « تاسو د مور او پلار په مخ کې (اف) هم مه وایاست. چې زړه يې له تاسو څخه نا راضه او خپه نشي.» کله چې د مور او پلار په مخ کې (اُف) ویل هم لازم نه وي نومونږ باید له هغو ټولو چارو څخه ځان وســاتو، چــې د دوی د خپګان سبب کېږي. له مور او پلار سره باید په ډېرې نرمۍ او ادب خبرې وکړو، همدا راز رسول الله (ص) د مور او پلار په اړه داســې فرمــايي:« دالله(ج) رضا د مور او پلار په رضا کې ده » يعني که له چا څخه مور او پلار خوښ او خوشحاله وي الله (ج) به هم ور څخه خوښ او راضي وي خو که له چا څخه مور او پلار نا راضه وي، الله (ج) به هم ور څخه ناراضه وي، نــو غوره دا ده چې مونږ د مور او پلار سره ښه چلند وکړو. په مینه اواحترام د هغوی خدمت وکړو او تل يې دعا واخلو چې نیکمرغي مو په برخه شي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې له یو بل سره د مور او پلار د حقونو په هکله خبرې وکړئ او بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي اوپه دې هکله چې په کور کې له مور اوپلار سره کومې مرستې کوي خبرې وکړي.

- د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.

– خدای(ج) فرمایلي دي: تاسو د مور او پلار په مخ کې (اُف) هم ______.
(مه وآیاست، مه باسئ)

– د الله(ج) رضا د مور او پلار په رضا کې ______ . (ده، دی)

- زده کوونکي دې په ګروپونو وویشل شي او د چوکاټ کلمې دې په خپلو کتابچو کې هیجا کړي.

| نېکي، نې + کي |
|---|
| پلار |
| درناوی |
| آزار |
| مرسته |
| |

## کورنۍ دنده:

– د مور او پلار د حقونو په هکله دوه لنډې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

پنځلسم لوست

# د مور ورځ



**موخه:** د مور د ورځې د لمانځلو په هکله معلومات ورکول ، د مفرد او جمع کلمو پېژندل او ددې متن سم لوستل او سم ليکل دي.

**پو ښتنې:**

۱. د مور د لمانځلو د ورځې په هکله څه ويلی شئ؟
۲. آيا تاسو کله د مور ورځ لمانځلې ده؟ که مو لمانځلې وي په څه ډول؟
۳. تاسې د مور د لمانځلو په ورځ خپلې مور ته څه شی اخلئ؟

**افسانه او زلمی خور او ورور دي. دواړه په دريم ټولګي کې زده کړه کوي. دوی چې کله ښوونځي ته ځي، پلار يې هغوی ته دوې دوې افغانۍ ورکوي. زلمي خپلې پيسې لګولې، خو افساني يوه افغانۍ لګوله او يوه افغانۍ يې ساتله. کله چې د مور ورځ رانژدې شوه، افسانې خپلې مورته يوه ښايسته د ګلانو ګېډۍ د ګلانو له پلورنځي څخه واخېسته او ددې ورځې په نمانځلو کې يې خپلې مور ته ډالۍ کړه. بيا يې خپلې مورته د دغې ورځې مبارکي ووېلــه او د مور لاسونه يې ښکل کړل. مور يې د افسانې مخ ښکل کړ او خوشـــحاله شوه. زلمي چې پيسې لګولې وې او خپلې مور ته يې هېڅ هم نه و اخيستي، پر خپلو کړو ډېر پښېمانه و. پرېکړه يې وکړه، چې نور به هېڅکله بې ځايه پيسې نه لګوي.**

لغتونه او معناګانې:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ښايسته : | ښکلې | ښکل : | مچې |
| ګېډۍ : | کوده | پرېکړه : | فيصله |
| ډالۍ : | تحفه | | |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې د مور د ورځې د لمانځلو په اړه له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشئ او په دې هکله خپل معلومات نورو ته وړاندې کړئ.
- د چوکاټ د مفردو کلمو سره د جمع کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| مور | میندې |
| ورځ | |
| خور | |
| ورور | |
| مخ | |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (مور، خـــور، ورور، ورځ) کلمې ولیکي او بیا دې په لنډو جملو کې وکاروي.

# د لیک او لوست ارزښت

**موخه:** د لیک او لوست په ارزښت پوهېدل اوهم وپوهيږي چې لیک او لوست د ژوند لــه لومړنيو اړتياوو څخه دی. همدا رنګه په لوست کې د مترادفو کلمو په نښه کول او لوستل دي.

**پوښتنې:**

۱. د لیک او لوست زده کړه څه ګټې لري؟
۲. لیک او لوست ولې او څه ارزښت لري؟
۳. موږ ولې لیک اولوست زده کوو؟

جبار خان به تل د لیک او لوست د زده کړې مخالفت کاوه، خپلــه لــور سپوږمۍ يې ښوونځي ته هم نه پرېښوده. يوه ورځ جبار خان او د هغه زوی ايمل د چکر وهلو شوق وکړ. دواړه په آس سپاره شول او چکر وهلو تــه ووتل. ايمل قلم او کاغذ هم له ځانه سره واخيستل. جبار خان او ايمل دواړه له خپل کلي څخه ليرې په يوې هديره کې له آس نه لاندې وغورځېــدل. د جبار خان پښه ژوبله شوه او په لاره تلی نه شو. د ماښــام تيــاره ورو، ورو خوريده. جبار خان هک پک و چې څه وکړي. ايمل خپل پلار ته وويل: «چې هيڅ اندېښنه مه کوه زه به کور ته ليک وليکم» ايمل يو ليک ليکي. د آس په تندي يې ځړوي او آس کور ته ليږي، سپوږمۍ چې په کور کې د آس په تندي ليک ويني. سمدلاسه يې اخلي او هغه خپلې کورنۍ ته لولي. کورنۍ يــې د کلي خلک خبروي. کليوال ورځي او هغوی ژغوري. جبار خان له دې پېښې څخه وروسته وغوښتل چې ايمل ته سوغات ورکړي، خو ايمل د سوغات پر ځای د خپلې خور سپوږمۍ ښوونځي ته بيرته شامليدل غواړي. جبار خان چې د ليک اولوست ارزښت په سترګو وليده نو خپلې لور ته يې د ښوونځي د بير ته شامليدو اجازه ورکړه سپوږمۍ له خپل پلار نه ډېره خوشحاله شوه.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- لوست په لوړ آواز ولولئ او په خپلو ګروپونو کې د لوست د مطلب په هکله له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د لوست په مطلب دې خبرې وکړي.
- لاندې مترادفې کلمې د کرښې په وسیله سره په خپلو کتابچو کې ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| تل | بچېدل |
| سوغات | زخمي |
| ژوبله | تحفه |
| ژغورل | همېشه |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

الف: جبار خان اکا تل د لیک او لوست د زده کړې __________.

ب: دوی له خپل کلي څخه لېرې په هدیره کې له آس نه لاندې ________.

ج: جبار خان اکا له دې پیښې څخه وروسته خپلې لـــور_______ تـــه د ښوونځي د تلو _____ ورکړه.

# نظم

چې د غره په څوکه لمر شي راښکاره
لوی واړه یې شي د مخ په ننداره

**موخه**: د نظم پېژندل، د نظم لوستل او لیکل دي.

**پوښتنې**:

۱. د پورتني چوکاټ په منځ کې څه لیکل شوي دي؟ څوک یې لولي؟

۲. تاسې نظم پېژنئ؟

**نظم**: هغه وینا او لیکنه ده چې وزن او وزن لرونکې کلمې ولري. نظم له یوه بیت، دوو بیتونو او یا زیاتو بیتونو څخه جوړېږي. لکه لاندې:

**څلوریزه**:

**چې د غره په څوکه لمر شي راښکاره**
**لوی واړه یې شي د مخ په ننداره**
**ماشومان ژر روانېږي ښوونځي ته**
**هر څوک خپل کار پسې درومي دوباره**

**خو دا څلور بیته نظم دی**:

**سوله**

**ته کوتره یې د سولې** | **بشر سولې ته رابولې**
**تل د سولې نښانه یې** | **د ژوند لوړه ترانه یې**
**په هر چا باندې یې ګرانه** | **ټول خوښې غواړي له تانه**
**سر لوړي د ټول جهان یې** | **د انسان د ژوند ارمان یې**

کارګر

---

**بیت**: د نظم هغه برخه چې له دوو مصرعو څخه جوړه شوې وي.

لغتونه او معناګانې:

| سوله : روغه جوړه |
| --- |
| ارمان : هیله، امید |

## دزده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوستل شوی نظم له یو بل سره ولولي.
- په ګروپیزه توګه په نظمونوکې هموزنه کلمې پیدا کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
- زده کوونکي دې له یو بل سره د نظم په مفهوم او معنا خبرې وکړي او نظمونه دې په یاد زده کړي.

## کورنۍ دنده:

ګرانو زده کوونکو!

- لوستل شوي نظمونه په یاد زده کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

# ځانځاني



**موخه**: د شعرلوستل، لیکل، د ځانځاني په مفهوم او د هغه په زیانونو پوهېدل او په شعر کې د متضادو کلمو پېژندل دي.

## پوښتنې:

۱. انځور ته وګورئ او خبرې پرې وکړئ!
۲. ویلی شئ چې ځانځاني څه ته وایي؟
۳. ځانځاني ولې ښه کار نه دی؟

| | |
|---|---|
| دوې مرغۍ مې ولیدلې | په خپل منځ کې چغېدلې |
| چغو پغ یې سره تود شو | یو له بله نړدې شولې |
| آخر دواړو جنګ شروع کړ | پښې پنجې یې لګولې |
| کوله لکه پنډوسکې | پاس په ځمکه ولوېدلې |
| پیشو غلې هلته ناسته | دواړه یې غبرګې ونیولې |
| غلیم دواړه ځانځانۍ کې | په مزه مزه خوړلې |

ځانځاني د ځان بلا ده
دا خبره ما منلې

روغمن

**لغتونه او معناګانې**

| | |
|---|---|
| ځانځاني : ځان ستاینه یا خود خواهي | غلې : آرامه |
| جنګ : جګړه | غلیم : دښمن |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- نظم ولولئ او په خپلو ګروپونو کې د شعر د مطلب په هکله خبرې وکړئ. او بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي د شعر مطلب دې نورو ته څرګند کړي.
- لاندې کلمو ته متضادې کلمې له چوکاټ څخه وټاکئ او د کلمو تر څنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

لیرې، لاندې، دلته، دوست، یووالی

الف: جنګ سوله ب: نږدې_____ ج:پاس______

د:هلته______ هــ: غلیم______ و:ځانځاني______

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د مرغۍ، جنګ، ځانځاني او پیشو له کلمو څخه په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړي.

# هوښیاره نجلۍ



**موخه**: د مرستې په ارزښت پوهېدل، له بې وزلو او سپین ږیرو سره مرسته کول او د دغه متن لوستل او لیکل دي.

**پوښتنې**:

۱. که یو سپین ږیری او یا کوم معیوب غواړي چې د سړک څخه تېر شي تاسې له هغوی سره څه کولی شئ؟

۲. ستاسو په نظر له سپین ږیرو او معیوبو خلکو سره مرسته کول څه ډول کار دی؟

**صابره چې په دریم ټولګي کې زده کړه کوي. یوه ورځ چې د ښوونځي په لور روانه وه، یو سپین ږیری یې ولید، چې د سړک په خوا کې ولاړ دی. غوښتل یې له سړک نه تېر شي، خو پــه ســړک د مــوټرو او بایسکلونو د تګ راتګ له امله نه شو تېرېدی. د صابرې چې ورته پام شو، ژر یې ځان سپین ږیري ته ور ورساوه، هغه یې د لاسه ونیــو او د سړک څخه یې تېر کړ. سپین ږیری له صابرې څخه ډېر خوشـــحال شو او ورته یې وویل: «لورې! پاک خدای (ج) دې همېشه بریالۍ لره.»**

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| سپين ږيرى | زوړ، د زيات عمر خاوند |
| همېشه | تل |
| بريالى | کاميابه |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- لوست په لوړ آواز ولولئ!
- زده کوونکي دې په ګروپونو کې د مرستې په هکله له يو بل سره خبرې وکړي بيا دې د هر ګروپ يو تن د ټولګي مخې ته راشي او د لوست مطلب دې په لنډه توګه نورو ته ووايي.
- لاندې جملې په خپلو کتابچو کې وليکئ او تش ځايونه يې په مناسبو کلمو سره ډک کړئ!

صابره چې په ________ ټولګي کې زده کړه کوي.

يو سپين ږيرى سړى يې وليد چې ________ په خوا کې ولاړ دى.

غوښتل يې چې د سړک څخه ________ شي.

دصابرې چې ورته پام شو ژر يې ځان وررساوه ________ يې دلاسه ونيو او د سړک څخه يې تېر کړ.

## کورنۍ دنده:

- په خپلو کتابچو کې د (مرسته، سپين ږيرى، سړک) کلمې په لنډو جملو کې وکاروئ.

شلم لوست

# د کور په کارونو کې مرسته



**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، په متن کې د نومونو پېژندل او د مرستې په ارزښت او ګټو پوهېدل او له خپلې کورنۍ سره په چارو کې مرسته کول دي.

**پو ښـتنې**:

۱. تاسې له مور او پلار سره په کارونو کې څه ډول مرستې کوئ؟

۲. ستاسو په نظر مرسته او همکاري څه ګټې لري؟

**زرغونه د احمد خور ده. دوی چې یوه ورځ له ښوونځي نـه کورتـه راغلل، ګوري چې مور او پلار یې په کور کې نشته. احمد، زرغونې ته وویل: « هو! مور او پلار مو حتمي د غنمو لو ته تللي دي.» زرغـونې وویل: « ډوډۍ به وخورو، زه او ته به هم ور پسې د غنمو لو ته لاړ شو او هلته به د مورجانې او پلار جان سره مرسته وکړو.» احمد وویـل: « ډېره ښه خبره دې وکړه لاړ به شو.» زرغونـه او احمـد د ډوډۍ له خوړلو وروسته د غنمو پټیو ته لاړل. ګوري چې پلار یې لو کـوي او مور یې د غنمو وړي ټولوي. خور او ورور هم لستوني بډ وهل، او د غنمو د وږو په ټولولو یې پیل وکړ. پلار او مور یې په دې کار ډېر خوښ شول. سربېره پردې چې له خـپل کار نه یې د ستړیا احـساس ونه کړ. په خپل ګډ کار سره یې د غنمو لو په ښه توګه پای ته ورساوه. ښه زده کوونکي تل له مور او پلار سره په کارونو کې برخه اخلي او له هغوی سره مرسته کوي.**

**لغتونه او معناګانې:**

| مرسته : کومک |
| --- |
| ګله : یوځای |
| لو : ربېل |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د لوست متن په چوپتیا سره ولولي.
- ځو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست مطلب دې د کیسې په توګه نورو ته ووايي.او هم دې له خپلې کورنۍ سره د مرستې کولو خبرې وکړي.
- د چوکاټ له تورو څخه په خپلو کتابچو کې په عمودي او افقي توګه کلمې جوړې کړئ.

| | | | | م |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ل | ل | غ | ا | ر |
| | | ن | | س |
| | | م | | ت |
| | | و | | ه |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې دلاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

۱. زرغونه د احمد ______ ده. ( خور، وريره)

۲. دوی چې یوه ورځ د ________ څخه کور ته راغلل. (ښوونځي، ټولګي)

۳. زرغونې وويل، ډوډۍ به وخورو، زه او ته به هم ورپسې د ______ لو ته ولاړ شو. (غنمو، جوارو)

# خواخوږي



**موخه:** د متن سم لوستل ، لیکل او د خواخوږي په معنا پوهېدل او لـه نـورو سـره د خواخوږي درلودل دي.

## پو ښتنې:

۱.که څوک له یوې پېښې سره مخامخ شي تاسې له هغه سره څه کوئ؟

۲.آیا کوم وخت مو له چا سره خواخوږي کړې ده؟

یوه ورځ اجمل د ښوونځي په لور روان و. په لاره یې یو پنځه کلن هلک ولید، چې ناڅاپه یې په زړه کې څه وګرځېدل او په ځغاسته شو. خوځو ګامه لانه و تللی، چې پښه یې له ډبرې سره ونښته، په ځمکه ولوید او په ژړا شو.

اجمل چې د هغه لویدلو او ژړا ته پام شو. زړه یې پرې وسوځید. خپل لاسي بکس یې په ځمکه کېښود. هغه یې له ځمکې څخه راپورته کړ. کالي یې په کرار سره ورڅنډل. څرنګه چې هغه په زوره لویدلی و، لاسونه او ځنګنونه یې ژوبل شوي وو، له ډېر درد او سوي څخه یې ژړل. اجمل د لاسونو څخه ونیو او په ډېره مینه یې ورته وویل: خیر دی ورورجانه مه ژاړه! لاسونه او ځنګنونه به دې ښه شي! بیا یې اوښکې ور پاکې کړې. کوچني هلک چې د اجمل مهرباني او خواخوږي ولیده خپل درد یې هېر کړ. او له اجمل څخه یې مننه وکړه.

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| خواخوږي : | همدردي، زړه خوږي |
| منته : | کور ودانی |
| څنډول : | ټکان ورکول |
| ناڅاپه : | بې خبره |
| ځغاسته : | منډه |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لاندې کلمو سمه معنا د چوکاټ څخه وټاکئ او د کلمو تر څنګه يې په کتابچو کې وليکئ.

| منډه– ژوبل –زيات– تيرې– وړوکی |
|---|

ځغاسته:______ ډېرې:______ زخمي:______ ډېر:______ کوچنی:______

- د لوست د متن په اړه له يو بل سره خبرې وکړئ او بيا څو زده کوونکي د لوست د مطلب په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.
- دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي يو بل ته دې د لوست له مخې املا ووايي.

## کورنۍ دنده:

- لاندې کلمې لومړى په کتابچو کې وليکئ بيا د هرې کلمې توري وشمېرئ. او د کرښو لاندې يې وليکئ.

اجمل ، روان ، هلک ، ځمکه ، ژړا ، لاسونه
۴

# نثر

**موخه:** د نثر پېژندل، د نظم سره د هغه توپیر، لوستل او لیکل دي.

## پو ښتنې:

۱. تاسې نثر پېژنئ؟
۲. ستاسو په نظر نثر څه ته وایي؟

**نثر څه ته وایي؟ نثر هغه وینا او لیکنې ته وایي چې وزن لرونکې کلمې و نه لري. لکه زموږ ورځنۍ خبرې اترې.**

**یوه ورځ یو سړی ډاکټر ته ورغی، ویې ویل: ګېډه مې خوږېږي، ډاکټر وویل:« نن دې څه خوړلي دي؟» ناروغ وویل: « سوې ډوډۍ مې خوړلې وه.» ډاکټر ورته د سترګو درمل ورکړ. ناروغ پوښتنه وکړه: زما خو ګېډه درد کوي تا ولې د سترګو درمل راکړ؟ ډاکټر وویل: «که چېرې ستا سترګې روغې وای نو تا به هېڅکله سوې ډوډۍ نه خوره.»**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې یو د بل په مرسته لوستل شوی متن ولولي.
- زده کوونکي دې د نثر لنډ تعریف په یاد زده کړي.
- زده کوونکي دې یوبل ته د متن له مخې املا ووایي.
- زده کوونکي دې د نثر او نظم ترمنځ توپیر بیان کړي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې جملې ولیکي او تش ځایونه دې په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

یوه ورځ یو سړی ________ ته ولاړ او ویې ویل، ګېډه مې خوږېږي.

ډاکټر وویل، نن دې څه ________ دي؟

ناروغ وویل، ________ډوډۍ مې خوړلې ده.

ډاکټرورته د ________ درمل ورکړ.

ناروغ پوښتنه وکړه. زما خوګېډه دردکوي تا ولې د سترګو______ راکړه؟

ډاکټر وویل، کـه چېرې ستا سترګې روغې وای نو تا به هـېڅـکله

سوې ډوډۍ ________.

# مکرجنه ګیدړه او ناپوه چرګ

**موخه**: زده کوونکي دې لوست ولولي، سم دې يې وليکي او په دې پوه شي چې مکــر او فريب ښه کارونه نه دي او بايد څوک پرې ونه غولېږي.

## پوښتنې:

۱. په پورتني انځور کې څه وينئ؟
۲. تاسو ګيدړه ليدلې ده؟ خبرې پرې وکړئ!
۳. په تېر کال کې مو کوم ژوي او مرغان وپېژندل نومونه يې واخلئ؟



يوه ورځ د يوه کلي تر څنګ ګېدړه روانه وه، يو چرګ يې د ونې په ښاخ وليد، سمدلاسه ودرېده او په ډېر مکر يې د چرګ درناوی وکړ او ورته يې وويل: زه ستاپلار او ټول قوم پېژنم، پلار به دې په ډېر خواږه غږآذان کاوه چې په نړۍ کې دغه شان خوږ آذان د بل چا نه و.

که چېرې ته هم يو وار بانګ وکړې او کاشکې! ستاآواز هم ستا د پلار په شان خوږ وي. چرګ د ګېدړې په دې مکر وغولېده آذان يې وکړ. ناڅاپه ګېدړې پرې ور ټوپ کړ او چرګ يې ونيوه چرګ د خپلې ناپوهۍ له امله دګېدړې ښکار شو.

**لغتونه او معناګانې**

| | |
|---|---|
| مکر : | چل او فریب |
| کاشکې : | افسوس |
| نړۍ : | جهان |



## کیسۍ

ځناور دی وېـــرروونـــکی     د چرګانو غـــلا کـــوونکی

ډېر له سپو نه ډارېدونکی     څوک د دې دی، پېژندونکی؟

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوست په لوړ آواز ولولي.
- زده کوونکي دې لاندې کلمې په ځپو واړوي.

نړۍ: نــ ــ ړۍ

درناوی __________ شان __________ آذان __________

ناپوهي __________ ګېدړه __________

- کیسۍ ولولئ بیا یې ځواب په خپلو کتابچو کې ولیکئ!

## کورنۍ دنده:

– لوستل شوی متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکئ.

څلوېښتم لوست

# ماينونه



**موخه:** د ماينونو پېژندل ، د هغو له خطرونو څخه خبرېدل او دځان د ساتلو په لارو چارو پوهېدل او د دې متن لوستل او ليکل دي.

## پوښتنې:

۱. تاسې ماين پېژنئ؟ ۲. هغه ولې خطر لري؟

۳. تاسې څوک ليدلي چې د ماين له چاودنې څخه معيوب او يا مړ شوي وي؟

ماين د خلکو پټ دښمن دی. له بده مرغه زموږ په ګران هېواد کې ډېر ماينونه تر ځمکې لاندې ښخ پاتې دي. دا ماينونه په تېرو جګړو کــې ځای په ځای شوي دي. ماينونه بېلابېل ډولونه لري . ځينې يې د موټرو او ټانکونو پر ضد او ځينې يې هم د انسانانود تباهۍ لپاره دي. زموږ په هېواد کې زيات شمېر خلک د ماين د چاودنې په واسطه معيوب او يا هم وژل شوي. ماينونه د لوبو د سامان په بڼه هم په ځينو ځايونو کــې تيت او خواره شوي او که څوک لاس ور وړي نو هغه چوي، ســړی معيوب اوعيبي کوي او يا يې هم وژني. يو شمېر هغه ځايونه چې ماينونه په کې شته، د ماين پاکانو له خوا په نښه شوي دي، نو خلکو ته په کار دي. هغه ځايونه چې په سره رنګ سره په نښه شوي دي په پام کــې

وساتي،اوهلته تګ او راتګ ونه کړي چې خطر لري.او مور زده کوونکو ته لازمه ده چې له دې ډول ځایونو څخه ځان لیرې وساتو.

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| پټ : | ناخرګند |
| بده مرغه : | بدبخته |
| ماین : | چاودېدونکي شیان |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د هرې ډلې څخه دې یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او لوست دې په لوړ آواز ولولي.
- د لاندې چوکاټ متضادې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې د کرښې په واسطې سره ونښلوئ.




## کورنۍ دنده:

- لاندې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکئ اوتش ځایونه یې په مناسبو کلمو سره ډک کړئ

الف: ماین د خلکو پټ دښمن______.(دی، ده)

ب:زمونږ په هېواد کې ډېر ماینونه تر ځمکې لاندې ښخ پاتې ______.(دي، وي)

پنځه ویشتم لوست

# ترافیکي لارښوونې





**موخه**: د ترافیکي اشارو پېژندل، په ارزښت او اړتیا یې پوهېدل او د متن لوستل او لیکل دي.

## پوښتنې:

۱. په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟ خبرې پرې وکړئ!

۲. که وغواړئ له سړک څخه تېر شئ باید څه شی په پام کې ونیسئ؟

ګرانو زده کوونکو! هر کله چې تاسې ښار، بازار، او یا نورو ځایونو ته غواړئ لاړ شئ پام وکړئ! چې هلته ډېر موټرونه او بایسکلونه هرې خواته تګ او راتګ کوي. نو په کار ده چې هېڅ وخت د سړکونو په منځ کې تګ او راتګ ونه کړئ، چې دا کار خطر لري. کیدی شي چې خدای مه کړه موټر مو ووهي. همدا رنګه کله چې د سړک له یوې خوا څخه بلې خوا ته تېرېږئ لومړی باید د سړک دواړو خواووته وګورئ، چې موټر او نور وسایل نه وي. بیا په احتیاط او پوره پاملرنې له سړک څخه تېر شئ. همدا راز ماشومانو ته لازمه ده، چې د سړکونو څخه د تېریدلو په وخت کې د ترافیک څخه مرسته وغواړي. د سړکونو په غاړو کې ځینې نښې شته، چې هره نښه یې د لارویو او موټر چلوونکو لپاره ښه اوځانګړې لارښوونه ده. دا نښې د ترافیکي نښوپه نامه یادېږي.

ځینې ترافیکي نښې دادي:





له سړک څخه د تېرېدو نښه


دپام کولو نښه


د نه تم کېدو نښه


د بس د تم ځای نښه


د موټرو د تم ځای نښه

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوست په لوړ آواز ولولي.
- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ترافیکي اشارو د ګټو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي او بیا دې د هر ګروپ یو کس د ټولګي مخې ته راشي د ترافیکي اشارو په هکله دې نورو ته معلومات ورکړي.
- په خپلو کتابچوکې د لاندې چوکاټ انځور او نښې وکاږئ او بیا یې نومونه له مناسبو انځوروونو سره د کرښې په واسطه ونښلوئ؟




## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د سور، شین او ژیړ کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

# رښتیا ویل

**موخه:** زده کوونکي د رښتیا په ارزښت او ګټو پوه او رښتیا ویل د ځان عادت وګرځوي. د دروغو په زیانونو باندې هم وپوهېږي.

## پوښتنې:

۱. آیا رښتیا ویل ښه او غوره کار دی؟
۲. تاسو پوهېږئ رښتیا ویونکوته خلک په کومه سترګه ګوري؟
۳. خلک ولې د دروغجن سړي په خبرو باندې باور نه کوي؟

**هغه څه چې په خلکو کې د انسان عزت او اعتبار ساتي، هغه رښتیا ویل او له دروغو څخه ډډه کول دي. لکه چې وایي هر اوم شی پخېږي، خو انسان چې خام شي بیا نه پخېږي. دلته د انسان له خامۍ څخه مطلب دروغ ویل او د خلکو نه باوردی.که څوک یو ځل په دروغومشهور شو، نود هغه بیا رښتیا خبرې هم څوک نه مني او باور ورباندې نه کوي. څه ښه وایي چې د مرغلرې یو آب دی او چې آب ترې تویې شي بیا هېڅ ارزښت نه لري. د انسانانو عزت او درناوی هم دهغو په ښو او لوړو کړو وړو کې دی. په دروغو سره یې لکه د مرغلرې آب تویېږي.**

**د دروغجن سړي په مینه او دوستۍ هم څوک باور نه کوي. همدغه سبب دی چې دروغجن سړی دوست نه شي پیدا کولی. وګورئ د یوه چرګ په بانګ باندې خلک له خوبه را پاڅېږي او باور ورباندې کوي، خو د دروغجن سړي په لوړه او قول څوک باور نه کوي. نو ویلی شو چې دروغجن سړی په ټولنه کې هېڅ قدر او اعتبار نه لري. دروغ ویل ډېر ژر ښکاره کېږي.**

**په دې اړه يو متل دی چې (د دروغو مزل لنډ دی). که څوک غواړي چې په ژوند کې بريالی شي، خلک ورباندې باور ولري، نو په کارده چې تل رښتيا ووايي اوځان په رښتيا ويلو عادت کړي.**

**نوګرانو زده کوونکو! تاسو هم تل له خپلې کورنۍ او نورو ټولو خلکو سره رښتيا واياست او رښتينی چلند وکړئ. چې د خلکو د اعتبار وړ وګرځئ.**

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| خام : | اومه |
| ډوه : | ځان ساتل |
| څرګندېږي : | معلومېږي |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ آواز ولولي.
- د لاندې چوکاټ له کلمو څخه د جملو تش ځايونه ډک او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

| اعتبار، | دي، | نه مني، | مرغلره |
|---|---|---|---|

– هغه څه چې په خلکو کې د انسان عزت او ______ ساتي، هغه رښتيا ويل او له دروغو څخه دځان ساتل ______.

– که څوک يو ځل په دروغو مشهور شو، د هغه رښتيا خبره هـم بيـا څوک ______.

– خبره او وينا هم لکه ________ ده.

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په لنډو جملوکې وکاروي.

( اومه، ارزښت، رښتيا )

اووه ویشتم لوست

# روغتیا



**موخه:** چې زده کوونکي د روغتیا ساتنې په ګټو او ارزښتونو پوه شي. خپل بــدن پــاک وساتي او د دې شعر د لوستلو او لیکلو مهارتونه تر لاسه کړي.

## پوښتنې:

۱. د تاسو په فکر که څوک خپل بدن تل پاک وساتي د هغه روغتیا به څرنګه وي؟
۲. د روغتیا دساتنې په برخه کې موږ باید څه وکړو؟
۳. که چېرې خپلې روغتیا ته پاملرنه ونه کړو څه به پېښ شي؟

| | |
|---|---|
| زمــا روغتیا خوښه ده | تازه هوا خــوښه ده |
| لوبې مستي کــومــه | زما ښکلا خوښه ده |
| ځکه ځان پاک ساتمه | حد د خوراک ساتمه |
| ځان له مچانو ساتــم | ځان له بــدانو ساتم |
| مچ مېکروبونه راوړي | ځان له ټــګانو ساتم |
| ځکه خوشحاله یــمه | خلاص له جنجاله یمه |

اروابناد غلام حضرت روغمن

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- لوست یو د بل په مرسته ولولئ!
- زده کوونکي دې دخپل ځان د پاکوالي په اړه په وار سره خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې ( د روغتیا، هوا، ښکلا، پاک، خوراک، خوشحاله)کلمې

په خپلو کتابچو کې په تورو باندې واړوي.

لکه ر ــ وــ غ ــ ت ــ ی ــا ( روغتیا )

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې کلموته لنډې جملې جوړې کړي.
- روغتیا– هوا – پاک

# د چاپېريال د پاکوالي ساتنه



**موخه**: د خځلو د ځای پېژندل، د نويو کلمو په معنا پوهېدل اوددغه متن سم لوستل اوسم ليکل دي.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر که د خوړو او ميوو پوستکي په ټاکلي ځای کې وانه چول شي څه پېښېږي؟
۲. د چټليو د مخنيوي په خاطر بايد کوم ټکي په پام کې ونيسو؟

**که غواړو چې روغتيا مو ښه وي او ناروغه نشو څــه بايــد وکــړو؟ د خپل ځان، کورنۍ ، او د چاپېريال پاکوالي ته بايد ډېره پاملرنه ولرو. هر کله چې غواړو خواړه او مېوې وخورو، لومړی خواړه او مېوې بايد په پاکو اوبو ومينځو او بيا يې وخورو چې ناروغه نشو. همــدا راز د مېوو اودخوړو پوټکي بايد په ټاکليو اومناسبوځايونوکې واچوو. کـــه چېرې د خوړو پوټکي په لارې واچوو، نه يوازې دا چې په دې کارسره زمونږ د چاپېريال پاکوالی کمېږي، بــلــکې دا کار بـــيا د ډېـــرو ناروغيو لامل هم ګرځي. نو په کار دا ده چې تل دخپــل چاپيريــال پاکوالي ته پاملرنه وکړو.د مېوو د پوټکو او د نورو شيانو د بې ځايــه اچولو څخه ډډه وکړو، ترڅو دژوند چاپيريال مو پاک او روغتيا مو تل په برخه وي.**

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| چاپېريال : | شاوخوا |
| پوټکي : | د مېوو پوستکي |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- د لوست متن يو له بل سره ولولئ!
- زده کوونکي دې يو بل ته دلوستل شوي متن څو جملې املاء وواييي.
- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د پوستکي، مېوې، روغتيا، کلمې پــه تورو باندې واړوي.
- څو زده کوونکي دې په خپل وار د خځلو د بې ځايه اچولو په اړه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د متن لوستل شوې برخه په ښکلي خط سره وليکي.

# زمونږ چاپېریال

**موخه:** چې زده کوونکي خپل چاپېريال وپېژني، د چاپېريال د لوبو ميــدانونو، ســاعت تېرې وسايلو په ساتلو او ارزښت پوه شي او دا متن سم ولولي او سم يې وليکي.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر چاپېريال څه ته وايي؟
۲. خدای (ج) زمونږ په چاپېريال کې کوم شيان زمونږ د ګټې لپاره پيدا کړي دي؟
۳. تاسې په خپل کلي کې د لوبو کولو لپاره پارک او د لوبو وسايل لرئ؟
۴. تاسې د خپل کلي يا چاپېريال ساتنې ته څه ډول پاملرنه کوئ؟



په کوم ځای کې چې مونږ ژوند کــوو. هغه د چاپېريال په نوم يادېږي. زمونږ پــه چاپېريال کې خاورې، ډبرې، اوبه، ونې، بوټي، غلې، مېوې،څاروي، او الوتونکي شته دي. دا ټول شيان خدای (ج) زمونږ د ګټې اخيستنې لپاره پيدا کړي دي. ترڅو له دغو ټولو نعمتونو څخه ســمه ګټــه واخلو. نو مونږ ته لازمه ده چې د خپل چاپېريال سمسورتيا او پــاک ساتنې ته ډېره پاملرنه وکړو. ځکه چې په طبيعت کې دا ټــول شــيان ځانګړې ښه والي او ارزښتونه لري. په چاپېريال کې ونې او ګلان هوا پاکه او ستره ساتي. د پاکې هوا تنفس کول بدن ته ګټه رسوي او انسان له ناروغيو څخه ژغوري.

همدا راز بايد په ټاکلي وخت سره ونو او ګلانو ته اوبه ورکړو. دهغو پالنه وکړو او پرې نږدو چې څوک يې ښاخونه مات کړي.

سربېره پر دې هغه دلوبو وسايل چې په پارکونوکې زمونږ د لوبــو او دچاپېريال د ښايست لپاره دي په سمه توګه ترې کار واخلو،او ورتــه

**زیان ونه رسوو، ښه زده کوونکي تل د خپل چاپېریال په ساتنه کې ښه پاملرنه کوي او له خپل چاپېریال څخه په سمه توګه ګټه اخلي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې د لوست متن ولولئ. او د پارکونو، د لوبو د شیانو څخه د سمې ګټې اخیستو په اړه له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا د هر ګروپ یو تن دې د ټولګي مخې ته راشي او د چاپېریال په اړه دې خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.
- د لاندې چوکاټ د جمع کلمو مفرد شکل د کلمو ترڅنګ په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| ډېرې | ډبره |
| ونې | |
| مېوې | |
| نعمتونه | |

## کورنۍ دنده:

- له لاندې کلمو څخه هغه کلمې په ګوته کړئ چې زموږ په چاپېریال کې پیدا کېږي او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ! (ځاروي، تېږې خاوره، اوبه، ونې، ځمکه، ډېر، ټول)

دیرشم لوست

# د سګرټ څکولو زیانونه



**موخه**: د سګرټو په زیانونو پوهېدل، خان ترې ساتل او ددې متن لوستل او لیکل دي.

**پو ښتنې**:

۱. څه فکر کوئ چې سګرټ څکول کومې ناروغۍ رامنځ ته کوي؟

۲. څوک چې سګرټ څکوي د هغو روغتیا به څرنګه وي؟

۳. ویلی شئ چې د ناروغیو تر څنګ د سګرټ څکول نور کوم زیانونه لري او خلک ولې ترې کرکه کوي؟

سګرټ څکول د انسان لپاره زیان لري. سګرټ څکول د سږو او زړه لپاره ډېر خطرناک دي. هغه څوک چې سګرټ څکوي ډېر ژر به د زړه او سږیو په ناروغیو اخته شي، داسې کسان تل ټوخېږي. سګرټ نه یوازې دا چې روغتیا لپاره ضرر رسوي، بلکې اقتصادي تاوان هم لري او پیسې پرې مصرف کېږي. همدا راز د سګرټو په څکولو کې نورو خلکو ته هم زیان رسېږي، دا ځکه هغه لوګی چې د سګرټ څکوونکي له خولې څخه راوځي نورو ته هم تاوان رسوي. همدا راز که چېرې امېندواره ښځه سګرټ وڅکوي ماشوم ته يې هم د زیان رسېدو امکان شته. نو لازمه ده هغه څوک چې سګرټ څکوي ځانونه دې ترې په کلکه وژغوري.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- یو د بل په مرسته د لوست متن ولولئ. او بیا دې څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته په وار سره راشي او د سګرټ څکولو د زیانونو په اړه دې خبرې وکړي.
- د لاندې کلمو مناسبه معنا له چوکاټ څه وټاکئ او د کلمو تر څنګه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

الف: سږي: ________

ب: زیان: ________

ج: ماشوم: ________

| کوچنی |
| --- |
| تاوان |
| ششونه |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د سګرټ، روغتیا، ضرر، کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

# چرچرک او مېږی



**موخه**: د وخت بې کاره تېرولو په زيانونو پوهېدل، له وخت څخه په سمه توګه ګټه اخيستل او ددې کيسې لوستل او ليکل دي.

## پو بنستنې:

١. آيا تاسې خپل وخت بيکاره تېروئ او که په کار او زيار کې يې تيروئ؟

٢.ستاسو په نظر خپل وخت بې ځايه تېرول څه زيان لري؟

٣.ستاسو په فکر څوک چې په خپلو کارونو کې زيار باسي ژوند به يې څه ډول وي؟

يوه مېږې په اوړي کې ډېر زيار ايسته. ده به د ژمي لپاره خواړه برابرول، چرچرک د ونې په ښاخ ناست و او سندرې يې ويلې، په دې وخت کې يې مېږی وليد،نو داسې يې ورته وويل: (ای ملګريه! څومره زيار باسې؟) مېږې ورته وويل:(څه، څه ته دې خپلې سندرې وايه، ما پرېږده چې خپل کار وکړم) چرچرک سندرې ويلې او په خوښۍ يې شپې او ورځې تېرولې. ژمی را ورسېد او چرچرک چې خواړه نه درلودل، نو له مېږې څخه يې خواړه وغوښتل. مېږې ورته وويل:( تا خو د کار وخت په سندرو او ترانو تېر کړ او ما په ډېره خوارۍ د ژمي لپاره خواړه را ټول کړل). چرچرک په دې خبره غلی شو. مېږې بيا ورته وويل: (څرنګه چې په اوړي کې دې سندرې ويلې، اوس نڅا کوه!).

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ!
- د متن په مطلب له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا دې دهر ګروپ یو تــن د ټولګي مخې ته راشي د متن د مطلب په اړه دې خبرې وکړي اوهــم دې د کېسې لنډیزخپلو ټولګیوالو ته ووایي.
- د چوکاټ د ورکړل شویو کلمو هم معنا کلمې د کرښې په واســطه ســره ونښلوئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.




## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

الف: په ا وړي کې یو ________ ډېر زیار ایسته. (مېږي، مچۍ)

ب: چرچرک ____ ویلې او په خوښۍ یې شپې او ورځې تېرولې. (سندرې، بدلې)

دوه دېرشم لوست

# د غاښونو ساتنه



**موخه:** دمتن سم لوستل، ليکل، د غاښونو د روغتيا په ارزښت او ګټو پوهېدل دي.

**پو ښتنې:**

۱. روغ او جوړ غاښونه څه ګټې لري؟
۲. تاسې د خپلو غاښونو د ساتنې لپاره بايد څه وکړئ؟
۳. په غاښونو باندې د کلکو شيانو ماتول کوم زيانونه لري؟

**د ملالۍ غاښ خوږېده پلار يې د غاښونو کلينيک ته بوتلـه. ډاکټـر چې کله د ملالۍ غاښونه وليدل نو پوښتنه يې ترې وکړه: ( په غاښونو دې څه مات کړي دي؟ ملالۍ ځواب ورکړ: پرون مې بادام پرې ماتول چې پاسنی غاښ مې په درد شو. ډاکټر ورته وويل: (هېڅکله په غاښونو کلک شيان مه ماتوه، ځکه د کلکو شيانو ماتول غاښونه زيانمن کوي، غاښونه د خوړو د ژولو لپاره يوه ډېره ارزښت ناکه وسـيله ده، کـه غاښونه مو روغ نه وي خواړه نشو ژوولی.**

**موږ بايد دخپلو غاښونو ښه ساتنه وکړو.) ډاکټر بيا تـرې وپوښـتل: غاښونه پرې مينځې؟ ملالۍ ځواب ورکړ (هو، هره شپه مخکې له ويده کېدو څخه يې مينځم.) بيايې ملالۍ ته وويل: ډېر ښه، نو موږ ته په کار دي چې د خپلو غاښونو ښه ساتنه وکړو.**

**او پلار ته یې وویل چې د دغې نسخې درمل واخله او په وخت سره دې مخکې له ډوډۍ خوړلو څخه وخوري. پلار یې د ډاکټر له لارښوونې څخه ډېر خوشحال شو او خپلې لور ته یې وویل: د ډاکټرصاحب لارښوونې همېشه په پام کې ونیسه، ترڅو د غاښونو په ناروغۍ اخته نه شې.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ او د غاښونو دارزښت په اړه له یو بل سره خبرې وکړئ او بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د خپلو غاښونود ارزښت په اړه دې معلومات وړاندې کړي.
- لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې په لنډو جملو کې وکاروئ

( غاښونه– کلک شیان – مینځم)

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست د متن له مخې څلور کرښې ولیکي.

# د ملاريا ناروغي

**موخه**: د متن لوستل، ليکل او د زده کوونکو پوهېدل، چې د ملاريا ناروغي د ماشــې د چيچلو په وسيله انسان ته لېږدول کېږي. او د مخنيوي لپاره يې بايد ولاړې او ناپاکه اوبه له منځه يوړل شي.

## پوښتنې:

۱. د ملاريا ناروغي څه ډول ناروغي ده؟
۲. دا ناروغي له څه شي څخه انسان ته پيدا کېږي؟
۳. مخکې له دې چې څوک د ملاريا په ناروغۍ اخته شي، څه ډول بايــد له هغې څخه ځان وساتي؟



د ملاريا نــاروغي د مياشـــي د چيچلو په وسيله انسان تــه لېږدول کېــږي. دا ماشـــې د انافيل په نامه يادېږي چې پـــه ولاړو اوبو، ډنډونو، تودو سيمو کې ژوند کوي. هلته هګۍ اچوي، د ملاريا ناروغي په اوړي او منې کې ډېره زياته وي. د ملاريا د مياشې له چيچلو څخه ورروسته په ناروغ سړه او توده تبه راځي او کله کله زړه بدي هم لري.

که دا تبه همېشنۍ شي، نو د ډېرو نورو ناروغيو لامل ګرځي پـــه دې ناروغي کې د وينې کمښت منځ ته راځي. نو ګرانو زده کوونکو! موږ ته په کار ده چې د امکان په صورت کې د ناولو او چټلو اوبو ډندونه له منځه يوسو او مخنيوی يې وکړو.

د کورونو کړکيو ته بايد جالۍ ونيسو. او د شپې له خوا بايد په پشه خانو کې ويده شو. که چېرې څوک په دغې ناروغۍ اخته شي بايد ډېر

**ژر اړوندو کلینیکونو ته ورشي ځکه دا خطرناکه ناروغي د نه درملنې په صورت کې د نورو ډېرو ناروغیو او حتی د مړینې لامل ګرځي.**

**مآخذ:** افغان اساسي قابلیتونه، پښتو لپاره د زده کړې لازمي مواد

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن ولولئ او د ملاریا د تبې په هکله یو له بل سره خبرې اترې وکړئ بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د ملاریا د ناروغۍ په هکله دې خپل معلومات وړاندې کړي.
- په خپلو کتابچو کې د لاندې چوکاټ دکلمو متضاد شکل د کرښې په وسیلې سره ونښلوئ.



| | |
|---|---|
| وروسته | مرګ |
| ژوند | لږ |
| ډېر | سوړ |
| تود | ډېرښت |
| کمښت | وړاندې |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

الف: د ملاریا تبه د میاشې د چیچلو په وسیله انسان ته ______. (لېږدول کېږي، پیداکېږي)

ب: د ملاریا ______ په اوړي او منې کې ډېره وي. (ناروغي، چیچل)

# هېوادنۍ مینه



**موخه**: له هېواد سره د زده کوونکو د مینې او هغه ته د خدمت کولو د ذهنیـــت وده او پیاوړتیا. او د دې متن سم لوستل او سم لیکل دي.

## پوښتنې:

۱. په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟ خبرې پرې وکړئ!

۲. زموږ د هېواد نوم څه دی؟

۳. هېواد ولې پر موږ ګران دی؟

**هېواد زموږ د ټولو افغانانو ګډ کور دی. او په دې کور کې ژوند کوو. د هېواد د پاکې او سوتره هوا څخه ګټه اخلو او په نعمتونو یې زمـــوږ بدن وده کوي.**

**د هېواد اوبه، لمر، هوا، خاوره، غرونه او ټول طبیعت یې د خپل تن په شان را باندې ګران او د زړه مینه ور سره لرو. خو دا مینه یوازې پـــه ویلو سره نه، بلکې په دې لاره کې عمل د رښتیانۍ مینې ښه ثبـــوت کېدلی شي. هېواد له موږ نه کار غواړي چې په رښتینې توګـــه خپلـــو هېوادوالو ته خدمت وکړو.**

**نن چې موږ زده کوونکي يو، د خپلې مينې د پوره ثبوت لپاره هم بايد خپل درسونه ښه زده کړو، د خپل ګران هېواد او خلکو لپاره د کار او خدمت وړ وګرځو او په راتلونکي کې د دې وړتياوو په اساس وکړى شو چې خپل دا وران او ويجاړ هېواد ودان کړو.**

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ!
- د لاندې کلمو هم معنا له چوکاټ څخه پيدا کړئ او د کلمو تر څنګ يې په خپلو کتابچو کې وليکئ!

الف: هېواد____وطن____

ب: ګټه ________

ج: وده ________

د: ويجاړ________

| نمو |
| --- |
| فايده |
| وطن |
| وران |

## کورنۍ دنده:

- د لاندې جملو تش ځايونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره ډک کړئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ!

هېواد زموږ د ټولو افغانانو ګډ کور______. (دی، ده)

د هېواد اوبه، لمر، هوا او خاوره را باندې ګران______. (دي، لري)

پنځه دېرشم لوست

# د غزني ښار

**موخه:** د متن لوستل، لیکل او د خپل هېواد د غزني د تاریخي ښو ښانو پېژندل دي.

## پوښـتنې:

۱. تاسو ته د خپل هېواد تاریخي ځایونه معلوم دي ؟ نومونه یې واخلئ؟

۲. د غزني په ښارکې د تاریخي ځایونو ښېې ښانې مو لیدلې دي؟



**غزنی زموږ د ګران هېواد افغانستان ډېر لرغونی ښار دی، غزنی د اسلام د سپېڅلي دین له راتګ سره په لومړیو وختونو کې د غزنویانو د پاچاهۍ مرکز و، دا ښار د سلطان محمود غزنوي له خوا اداره کېده، سلطان محمود غزنوي نه یوازې یو ځواکمن پاچا و، بلکې د هنرونو ښه پالونکی هم و، هغه د غزني ښار له پوهانو او هنرمندانو ډک کړی و.**

**د غزني په ښار کې د لرغونو آثارو ښېې ښانې لا تر اوسه هم پاتې دي له هغو څخه دوه ستر منارونه دي چې د کابل او غزني د سړک په غاړه اوس له خپلو تاریخي ویاړونو سره ولاړ دي.**

**همدا راز یوه ماڼۍ او د هغه وخت د سرتېرو د استوګنځیو ښېې ښانې هم لیدل کېږي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې دې متن ولولي او د لوست د مطلب په اړه دې یو د بل سره خبرې وکړي. بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د غزني د ښار په هکله دې معلومات ورکړي.
- د لاندې چوکاټ هم معنا کلمې په خپلوکتابچوکې یو له بل سره په مناسبو کلمو ونښلوئ!

| | |
|---|---|
| لرغونی | قصر |
| څواکمن | غښتلی |
| مانۍ | پخوانی |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

الف: غزنی زموږ د ګران هېواد افغانستان یو ______ ښار دی. (لرغونی، زوړ)

ب: د غزني په ښار کې د لرغونو ______ نښې نښانې لا تر اوسه هم پاتې دي.(هنر، آثارو)

شپږ دېرشم لوست

# دوه اخترونه

**موخه**: چې زده کوونکي د کوچني او لوی اختر په هکله معلومات ترلاسه کړي او دا متن سم ولولي او سم يې وليکي.

**پوښتنې**:

۱. په انځور کې څه شی وينئ؟ خبرې پرې وکړئ!
۲. پوهېږئ چې زموږ خلک په کال کې څو اخترونه لري؟
۳. ستاسو په فکر خلک ولې په اخترونو کې خوشحالي کوي؟

مسلمانان په کال کې دوه اخترونه لري، يو يې کوچنی اختر دی، چې د روژې د مياشتې په پای ته رسېدو سره رارسېږي او دويم يې لوی اختر دی. په اخترونو کې خلک نوي کالي اغوندي. ښځې، پېغلې او ماشــومان خپـل لاسونه سره کوي، ځوانان او سپين ږيري د اختر د لمانځه لپاره جوماتونو ته ځي، هلته د اختر لمونځ کوي. همدا رنګه په لوی اختر کې زموږ هغــه خلــک چــې اقتصادي توان او وس ولــري پــه دغــو ورځوکې د پسونو، سېرليو او نورو څاروېو په حلالولو سره قرباني کوي او ځينې خلک په ګډه د غوايانو په حلالولو سره په قرباني کې برخه اخلي. چې د هغو يوه برخه غوښه په خپلو خپلوانو، ګاونډيانو او بې وزلو خلکو وېشي. په اخترونوکې خلک يو بل ته مبارکي وايي او يو د بل کورونو ته ځي.



## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن په خپلوګروپونوکې له یو بل سره ولولي او د مـــتن د مطلب په اړه دې خبرې وکړي.
- د جملو تش ځایونه دې په قوسونو کې په مناسبو لیکل شووکلمو ډک کړي!

په کوچني اختر کې خلک نوي کالي ____________.    (اغوندي، نه اغوندي)

ښځې، پیغلې او ماشومان خپل لاسونه سره _________.    (کوي، کوو)

سپین ږیري او ځوانان د اختر د لمانځه لپاره جوماتونو ته _____. (ورځي، نه ځي)

هغه خلک چې وس او توان لري په دغو ورځو کې ______کوي .(قرباني، خیرات)

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ( کوچنی، اختر، لوی ) کلمې په لنـــډو جملـــوکې وکاروي.

اووه دېرشم لوست

# د تګ راتګ وسېلې









**موخه:** د تګ او راتګ د وسیلو پېژندل، په ارزښت او ګټو یې پوهېدل او ددې لوست سم لوستل او لیکل دي.

## پو ښتنې:

۱. په انځورونو کې څه وینئ؟

۲. ستاسو په فکر مو‌ږ د تلو او راتلو لپاره څه شي ته اړتیا لرو؟

۳. د کلي او بانډو خلک خپل بارونه او مالونه په څه شي وړي او راوړي؟

**د یوه هېواد د پرمختګ لپاره د ډېرو نورو شیانو په څنګ کې د وړلو او راوړلو وسېلو ته هم اړتیا ده. ځکه چې د خلکو ټولې اړتیاوې په یوه وخت او یوه ځای کې نه پوره کېږي. هغوی ځینې وختونه نورو ځایونو ته ځي یا د نورو ځایونو څخه خواړه او د اړتیا وړ شیان خپلو سیمو اوکلو ته راوړي.**

**چې د دې کار د تر سره کولو لپاره دغو وسایلو ته اړتیا پیدا کوي لکه موټرونه، لارۍ، ګاډۍ، بایسکلونه، او همدا راز د ځینو څارویو لکه آس، اوښ، کچر، خر او نورو څخه هم د بار وړلو لپاره ګټه اخلي خپلې ستونزې او اړتیاوې پرې لرې کوي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لوست متن له یو بل سره ولولئ. او نوې کلمې معنا کړئ!
- ځو زده کوونکي دې د بار وړونکو وسېلو نومونه د ټولګي په مخ کې واخلي.
- د لاندې چوکاټ د مفردو کلمو څخه د جمع کلمې جوړې او په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ!

| مفرد | جمع |
|---|---|
| آس | اسونه |
| اوښ | |
| کچر | |
| موټر | |

## کورنۍ دنده:

لاندې کلمې په جملو کې وکاروئ! او په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ.

آس، موټر، کچر، بایسکل

# جرګه

**موخه:** جرګه و پېژني، په دې پوه شي چې شخړې او ستونزې په جرګو اوارېږي او هم د متن سم لوستل اوسم ليکل دي.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر جرګه څه ته وايي؟
۲. زموږ خلک خپلې ستونزې څه ډول اواروي؟



زموږ خلک خپلې ستونزې د جرګو له لارې اواروي. افغانانو ته دا پخوانی دود له نيکونوڅخه پاتې دی چې زموږ خلکو د غه منل شوی دود له پخوا څخه تر نن ورځې پورې پاللی دی. کله چې په ولسونو کې کومه ستونزه راپيدا شي، نو بيا جرګې جوړوي او خپلو ستونزو ته د جرګو په مرسته د حل لارې لټوي. جرګې ځانګړي قوانين لري. په دې غونډو کې د قوم هغه سپين ږيري او مشران راټولېږي چې ټولو ته منلي وي. جرګه کوونکي په يوه ټاکلي او ځانګړي ځای کې راغونډېږي، اړوندو ستونزو باندې خبرې کوي او په پای کې خپله عادلانه پرېکړه اعلانوي. زموږ خلک د جرګو پرېکړو ته په درنه سترګه ګوري او هغه مني.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن دې ولولي او په خپلو ګروپونوکې د متن د مطلب په اړه له یو بل سره خبرې وکړي او بیادې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د متن د مطلب په اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د لیکل شوو کلمو لپاره د هغو مترادفې کلمـــې پـــه چوکاټ کې پیدا او دکلمو تر مخې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

الف: جرګه:ــ دروغې جوړې غونډه

ب:ستونزې: ________

ج: سپیڅلی: ________

د: ځانګړې: ________

هـــ: پرېکړه: ________

| فیصله |
| --- |
| روغه جوړه |
| مشکلات |
| پاک |
| خاص |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د جرګه، پرېکړه، روغه جوړه کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

نهه دېرشم لوست

# وزلوبه (بزکشي)

**موخه:** د متن لوستل، ليکل د بزکشي د لوبې پېژندل او ددې لوبې په هکله معلومات تر لاسه کول دي.

## پوښتنې:

۱. آيا تاسو په کوم ځای کې وزلوبه ليدلې ده؟
۲. څوک د وزلوبې په اړه خبرې کولی شي چې دا لوبه په څه ډول تر سره کېږي؟
۳. دغه لوبه زموږ د هېواد په کومو ولايتونو کې تر سره کېږي؟

وز لوبه زموږ د خلکو ډېره لرغونې او په زړه پورې لوبه ده. دا لوبه زموږ د هېواد په شمالي ولايتونوکې ډېره دود ده. په دې لوبه کې هغه مهارت لرونکې سپاره ګډون کوي چې خپل اسونه يې د دې لوبې لپاره په خاصو مهارتونو سره روزلي وي. دوی په دوو ډلو وېشل کېږي او په بېلوبېلو نومونو يادېږي.



د وزلوبې د ميدان په مرکزي برخه کې يو ټاکلی ځای په پام کې نيسي چې د حلال د دايرې په نوم يادېږي. حلال شوی خوسکی يا وزه په دغې دايرې کې اچوي. د بزکشي لوبه د حلال له دايرې نه پيل، بيا په يوې بشپړې دورې سره چې له يوه بل ټاکلي ځای څخه را څرخېږي. دوه ځلې خوسکی بايد د حلال دايرې ته ورسوي او هلته يې وغورځوي په دې توګه هر ټيم چې په دغه لوبه کې نسبت نورو ته زيات فعاليت سرته ورسوي هغه ډله د لوبې ګټونکې بلل کېږي.

**دا لوبه زموږ د هېواد په زياتو ولايتونوکې هر کال د خپلواکۍ د جشن په وياړ تر سره کېږي. خلک د ننداريې لپاره هلته ورځي او همدا راز د کابل په ښارکې هم هرکال د جشنونو او نورو خوشحاليو په ورځو کې ترسره کېږي.**

**لغتونه اومعناګانې:**

| | |
|---|---|
| لرغونی : | ډېر قديمي |
| ګټونکی : | ورونکی |
| غښتلی : | قوي |
| وياړ : | افتخار |
| دود : | رواج |
| پيل : | شروع |
| ننداره : | سيل او کتل |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او بيا دې د لوست د اصلي مطلب په هکله يو بل سره خبرې وکړي وروسته دې د هر ګروپ يو تن راشي او د وزلوبې په اړه دې معلومات ورکړي.
- د لاندې جملو تش ځايونه دې د چوکاټ په مناسبو کلمو ډک کړي او په خپلو کتابچو کې وليکي.

| شمالي |
|---|
| لرغونی |

الف: د بزکشۍ لوبه زموږ د خلکو يوه ډېره ________ لوبه ده.

ب: دا لوبه زياتره د هېواد په ________ ولايتونو کې ډېر دود لري.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملوکې وکاروي او په کتابچو کې دې وليکي.

وزلوبه، هېواد، ټيم، جشن

څلوېښتم لوست

# د اوړي موسم



**موخه**: د اوړي دموسم پېژندل، د اوړي په موسم کې د هوا، مېوو او غلو دانو د پخېدو په هکله پوهېدل. د متن لوستل او ليکل دي.



## پو ښتنې:

۱. اوړی د کال څووم موسم دی او کومې مياشتې په کې شاملې دي؟
۲. په اوړي کې کومې غلې او دانې پخېږي؟
۳. په اوړي کې ولې مېوې او دانې پخېږي؟

اوړی د کال دويم موسم دی، دا موسم هم درې مياشــتې دی: (چنګـــاښ، زمری او وږی) چې ځينې خلک ورته د سرطان، اسد او سنبلې مياشتې هـــم وايي، د اوړي په موسم کې هوا ورو ورو تودېږي،چې دا تودوخه ډول ډول مېوې لکه خټکي، هندوانې، منې، ناک، شفتالو، زردآلو، آلوبـــالو، انګـــور، ګيلاس او همدا رنګه ټولې غلې دانې پخوي.چې زموږ د روغتيا او د ژوند سمبالولولپاره په زړه پورې ګټې لري.
په دغه موسم کې بزګران د خپلو غلو او دانو په راټولولو پيــل کــوي او د پسرلي د موسم  د خپل کار او زيار ګټې لاس ته راوړي او خپلې اړتياوې پوره کوي، ځينې بزګران او باغوانان د خپلو اړتياوو څخه زياتې مېوې او دانې د پلورلو لپاره بازارونو ته  وړي او هلته يې خرڅوي او له پيسو څخه يې د ژوند نورې اړتياوې پوره کوي.

لغتونه او معناګانې:

موسم : وخت، فصل
زيار : زحمت

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- يو د بل په مرسته دې د اوړي د موسم متن ولولي او بيا دې خو زده‌کوونکي په وار سره د اوړي په هکله خبرې وکړي.
- د اوړي د مياشتو نومونو هم معنا کلمې دې له چوکاټ څخه پيدا کړي او د کلمو تر څنګه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

سنبله
اسد
سرطان

الف: چنګاښ: ________

ب: زمرى: ________

ج: وږى: ________

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځايونه په قوسونوکې د ليکـــل شوو مناسبو کلمو له مخې ډک کړي.
- الف: اوړى د کال ________ موسم دى. ( دويم، لومړى )
- ب: د اوړي په موسم کې هوا ورو ورو ______. ( تودېږي، سړېږي )

# باغوان



**موخه:** د باغوان د دندې د ارزښت او ګټو پوهېدل او د دغه متن لوستل ، ليکل او په متن کې ورته (مشابه) کلمو پېژندل دي.

## پوښتنې:

۱. تاسې پوهېږئ چې باغوان چاته وايي؟

۲. تاسو ويلی شئ باغوان کوم مهم کارونه سرته رسوي؟

## کيسه:

**يوه بڼوال يو بڼ درلود. هغه به هره ورځ د سهار له خوا ځيني شيان لکه لور، رمبې او بېل په لاس د باغ په لور روان و. باغوان به په باغ کې ډېر زيار ايسته. ښې مېوې لرونکې ونې يې پکې کښېنولې وې. ده به د ونو له بېخونو څخه بې کاره واښه لېرې کول. اوبه به يې ورکولې او يوه ګړۍ به يې له کار او خدمت څخه خلاصون نه و.**

**هرکال به يې له دغه باغ څخه څه ناڅه ګټه تر لاسه کوله او له دغې لارې به يې خپله ګوزاره په ښه توګه کوله. لږه موده وروسته باغوان مړ شو. د هغه زوی چې د خپل پلار څخه يې بېل ژوند کاوه د پلار ټول مال او باغ ورپاتې شو.**

زوی يې په بې پروايي اوچړچو پيل وکړ. د لټۍ او بې پروايۍ له کبله د باغ غم خواري ترې پاتې شوه. اوبه به نه ورسېدې، نو د باغ ونې ورو ورو وچې او له ګټې شخه ولوېدې، دی اړ شو چې باغ او جايداد خرڅ کړي څه موده يې په هغو پيسو خپله ګوزاره وکړه، په پای کې هغه هم خلاصې شـــوې. د خوارۍ او غريبۍ په کړاوونو اخته شو.

لغتونه او معناګانې:

| | | |
|---|---|---|
| چړچو | : | عيش يا مزې |
| ګړۍ | : | ساعت |
| بڼوال | : | باغوان |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ يو تن دې د ټولګي مخې ته راشي اود متن مطلب دې نورو ته د کيسې په توګه ووايي.
- د لاندې ورته (مشابه) کلمو لپاره په چوکاټ کې دوې معنا ګانې درکـــړل شوې دي تاسې يې سمه معنا پيدا او د کلمو تر څنګه يې په خپلو کتـــابچو کې وليکئ:

الف: لور:________

ب: لور: ________

ج: بېل: ________

د: بېل: ________

| |
|---|
| طرف، خوا |
| يوم |
| يوازې |
| د ربېدلو آله |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتـــابچو کې دې وليکي.

لور، لور، بېل، بېل، باغوان

# د ونو ګټې



**موخه**: زده کوونکي د ونو په ګټو او ارزښت وپوهېږي.د مېوو لرونکو او بې مېوو ونو پـــه توپیر او ګټو وپوهېږي او لاندې متن ولولي او ويې ليکي.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر، ونې کومې ګټې لري؟

۲. آيا تاسې په کور کې ونې لرئ، ويلی شئ چې څه ګټې لري؟

**ونې د انسانانو په ژوند کې ډېرې ګټې لري، په هر ځای او سيمه کې چې ونې ډېرې وي د هغې سيمې هوا د روغتيا لپاره ډېره ګټوره ده. ټـــول انـــسانان، څاروي او مرغان پاکې هوا ته ډېره اړتيا لري. ناپاکه او ګردجنــــه هـــوا د ناروغيو سبب ګرځي.**

**همدا راز په هغه ځای کې چې ونې ډېرې وي، دهغه ځای چاپېريـــال هـــم سمسور وي چې دسيمې سمسورتيا او پاکي د انسان د روغتيا سبب ګرځي. همدا رنګه په سمسورو سيمو کې ډېرې ونې د بادونو او سېلابونو د مخنيوي سبب ګرځي.**

**زموږ په هېواد کې د ونو ډېر ډولونه شته، چې يو ډول يې مېوه لرونکې ونې او بل ډول يې بې مېوې ونې دي. د مېوه لرونکو ونو ډېرې ښې ګټې د هغو مېوې**

دي، سربېره په دې انسانان د بې مېوو ونولو لرګيو څخه د ژوند نورې اړتياوې پوره کوي.
د کورونو، کړکيو، دروازو، مېزونو، څوکۍ، الماری، او تر ټولو مهمه دا چې د سپين کاغذ په جوړولو کې ترې خورا ډېره ګټه اخيستل کېږي. همدا رنګه په ژمي کې هم د کورونو د تودولو لپاره ترې کار اخلي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې لوست ولولي.
- د ونو د ګټو په اړه دې په شفاهي توګه خبرې وکړي.
- لاندې کلمې دې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا يې په تورو واړوي.

(ونې– روغتيا– سپېڅلې– مېوې)

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د متن لوستل شوې برخه په ښکلي خط وليکي.

# د وخت ارزښت

**موخه:** د وخت په ارزښت پوهېدل او له هغه څخه هر اړخیزه ګټه اخیستل او د لوستلو او لیکلو د مهارتونو لاس ته راوړل دي.

**پوښتنې:**

۱. که تاسوخپل کارونه په ټاکلي وخت سر ته ورسوئ پایله به یې څه وي؟

۲. ولې وایي چې وخت د سرو زرو په ډول ارزښت لري؟



**ما ټول خلک پېژني، خو څان نه پوه کوي، زه په تلوار سره روان یم. چې یو ځل ولاړ شم بیانه راګرځم. زما په قدر ځینې خلک نه پوهیږي او له ما سره بې پروایي کوي. زه داسې خلکو ته حیران یم چې دوی زما په تللـو سـره خوانان شي، خو بیا کله چې د ځوانۍ عمر یې تېر شي ما هېر کړي، تر هغو چې سپین ږیري شي.**

**خو زه تاسو ته د دوستۍ دا خبره کوم چې زما په قدر پوه شئ او ما وړیا لـه لاسه مه ورکوئ. زه ډېر قیمتي یم او خلک ما سره زر بولي.**

**نو اوس ووایاست چې زما نوم څه دی؟ زه به یې درته ووایم زما نوم وخـت دی.**

مآخذ: پښتو زده کړې اساسي قابلیتونه

**لغتونه او معناګانې**

| | |
|---|---|
| تلوار : | ګړندیتوب |
| وړیا : | مفت |
| تللو : | تګ– تلل |
| سره زر: | طلا– |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن په خپلو ګروپونو کې ولولي، وروسته دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د لوست په مطلب دې خبرې وکړي.
- د لاندې چوکاټ مترادفې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا یې له یو بل سره د کرښې په واسطه ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| قدر | له یاده ایستل |
| هېرول | مفت |
| وړیا | باارزښته |
| قیمتي | ارزښت |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د وخت، قدر، سره زر کلمې په لنډو جملو کې وکاروي.

څلور څلوېښتم لوست

# باران



**موخه**: زده کوونکي باید پوه شي چې باران څنګه منځ ته راځي، څه ګټې لري. او د متن سم لوستل او لیکل دي.

**پو ښتنې**:

۱. څوک ویلی شي چې باران ځمکې ته څه ګټې رسوي؟

۲. که چیرې باران نه وي څه پیښیږي؟

۳. ستاسو په نظر باران څنګه منځ ته راځي؟

**اوبه د ټولو ژوو د ژوندي پاتې کېدو لپاره له لومړنیو اړتیاوو څخه ګڼل کېږي. نو ځکه باران هم د ژوند لپاره ډېر ارزښت لري. ځمکه اوبه کـــوي، ونو، بوټو او ټولو نباتاتو ته ژوند او وده ورکـــوي. د انـــسانانو، څـــارویو، الوتونکو او د نورو ټولو ژوو ژوند د اوبو په وسیله پایښت مومي.**

**اوس باید پوه شو چې باران څنګه راځي؟ د ځمکې پرمخ اوبه د لمر د وړانګو په واسطه تودیږي، ورو ورو د بخار په توګه هوا ته پورته کېږي، بیا هلته د هوا د لوړوالي له امله سړه او د وریځو په څېر په فضا کې راټولېږي او د څاڅکو په څېر بېرته ځمکې ته راښکته کېږي چې موږ یې باران یا د الله تعالی (ج) لوی رحمت بولو.**

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| ژوي : | ژوندي موجودات |
| اړتیا : | ضرورت |
| بقا : | پایښت |
| په څېر : | په شان |
| وده : | نمو |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن دې په لوړ آواز ولولي.
- د اوبو د ګټو په هکله دې یو له بل سره خبرې وکړي او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د اوبو د ګټو په هکله دې نورو تــه معلومات ورکړي.
- د لاندې ګډو وډو کلمو څخه یوه لنډه جمله په خپلو کتابچو کې جوړه کړئ.
( باران، رحمت، بولو، د الله تعالی ( ج )، لوی )

## کورنۍ دنده:

- لاندې جملې ولولئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
- باران د ژوند لپاره ډېر ارزښت لري. ځمکه پرې اوبه کېږي او سمـــسورتیا مومي. ونو، بوټو او ټولو نباتاتو ته ژوند او وده ورکوي.
- باران د الله تعالی لوی رحمت او د ژوند له لومړنیو اړتیاو څخه بلل کېږي.

# بزګر

**موخه:** د نظم لوستل، لیکل او د بزګر د دندې په ارزښت او ګټو پوهېدل دي.

## پوښتنې:

۱. تاسو کوم بزګر پېژنئ؟

۲. بزګر په ځمکه کې څه شی کري؟

۳. بزګران له کومو شیانو څخه د ځمکې په کرلوکې کار اخلي؟

**ځمکه وتره په اوبو کـا**
**بیا یې یوې په غویو کـا**
**تخم و شیندي پټي کــې**
**بیا ماله یې په ورو وروکـا**
**څوک کرکیله په ماشین کا**
**دچا زړه بیا غویي شین کـا**

(روغمن)



## کېسی

**هغه کومه کلمه ده که د ښې لورې نه یې ولولې دخوړلو شی او که د کیڼ لورې نه یې ولولې د اغوستلو شی ورڅخه جوړېږي؟**

م، ر، چ = (          )          چ، ر، م = (          )

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| وتره : | نیمه وچه |
| یوې: | قلبه |
| شیندي : | تیتوي |
| کرکیله : | کښت |
| شین: | غمجن |
| ښې : | راسته |
| کیڼ: | چپه |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې نظم له یو بل سره ولولي او مطلب دې په خپلو منځونو کې ووایي او بیا دې د هر ګروپ یوغړی د ټولګي مخې ته راشي او د بزګری په اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د لوستل شوې کیسې ځواب په خپلو کتابچو کې ولیکي او زیار دې وباسي چې داسې کلمې پیدا کړي چې دکیڼ لوري څخه په لوستلو سره یوه معنا او د ښي لوري څخه بله معنا ورکړي. لکه ( چرم او مرچ )

### پوښتنې:

- بزګر ځمکه په څه شي یوې کوي؟
- بزګر په ځمکه کې څه شی کري؟
- بزګران کله چې په پټیو کې تخم وشیندي وروسته یې ولې ماله کوي؟

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د بزګر شعر په یاد زده کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# ترکاڼ



**موخه**: د ترکاڼۍ په ارزښت پوهېدل، د ترکاڼۍ د سامانونو پېژندل، د متن سم لوستل او سم لیکل دي.

## پوښتنې:

۱. په پورتني انځور کې څه شی وینئ؟
۲. ستاسو په نظر ترکاڼ له لرګیو څخه کوم شیان جوړوي؟
۳. د ترکاڼۍ د سامانونو، نومونه څو ک ویلی شي؟

**ترکاڼي ډېر ښه او ګټورکسب دی. ترکاڼ په ټولنه کې خورا ارزښت لري.ترکاڼ ته ټول خلک اړتیا لري. د اجمل مشر ورور ترکاڼ دی. هغه د لرګیو څخه د قرآنکریم ښه ریپلونه، مېزونه، څوکۍ ، دروازې، کړکۍ ، د لیک تختې، خطکشونه او الماري جوړوي، همداراز د بزګرۍ لپاره هم ځینې سامانونه لکه ژغ، غاښور، ماله، راشپېل، ښاخې او داسې نور شیان جوړوي.**

**ترکاڼ خپل کارونه په اره، تېشه، رنده، برمه اوډېرو نورو سامانونو ترسره کوي. خو اوس د ترکاڼۍ له ځینو سامانونو لکه رنده، برمه، اره او داسې نورو څخه د برېښنا په وسیله کار ترې اخیستل کېږي. د ترکاڼ لپاره کار آسان شوی دی او کولی شي چې په لږه موده کې د اړتیاوړ خورا ښه شیان جوړ کړي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- له یو بل سره متن ولولئ!
- د ترکاڼ او د هغه د سامانونو په اړه خبرې وکړئ!
- د لاندې جملو تش ځایونه په قوسونو کې په لیکل شوو مناسبو کلمو ډک کړئ او بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

– ترکاڼي ډېر ښه او ګټور کسب ____________. (دی، لري)

– هغه ته ټول خلک اړتیا ________. (لرو، لري)

د مشق اوتمرین املا: زده کوونکي دې له یو بل سره د متن د جملود املا کار وکړي.

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې هجا کړي. لکه (تر – کاڼ)

(ترکاڼ، ټولنه، اجمل، لرګیو، اره، ترښځ، رنده، برمه)

( رایل ) یا (رحیل) د ضرب (×) د نښې غوندې له لرګي څخه جوړه شوې یوه آله ده چې په منځنۍ برخه کې قاتېږي او قرآن کریم ورباندې اېښودل کېږي.

## کورنۍ دنده:

– د ترکاڼ د سامانونو، نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په جملو کې یې وکاروئ!

# تېليفون



**موخه:** چې زده کوونکي تېليفون وپېژني په ارزښت يې پوه شي. بشر ته د خدمت کولـو ذهنيت پيدا کړي. اولاندې متن سم ولولي او سم يې وليکي.

## پو ښـتنې:

۱. تېليفون د څه شي لپاره کارول کېږي؟
۲. تېليفون څه ارزښت لري؟
۳. تېليفون که نه وای څه کېدل؟





د تېليفون اختراع د لومړي ځل لپاره د يو امـــريکايي پوه لــه خوا چــــې (ګراهام بل) نومېده وشوه.خو د ګراهام بل تېليفون بشپړ نه و. وروســـته د نورو پوهانو له خوا تېليفون بشپړ شو او تر لېرې واټن پورې يې غږ ولېږداوه.
اوس په نړۍ کې د تېليفون په اړه زيات بدلونونه رامنځ ته شوي دي.
خلک کولی شي په ډېرې آسانۍ سره د نړۍ له يوه ګوټ څخه بل ګوټ ته خپل پيغام واستوي. سربېره پردې اوس کوچنی تېليفون چې ګرځند (موبايل) نومېږي په بېلابېلو بڼو ډېر ښکلی جوړ شوی دی. (موبايل) ګرځنده تيلفون ته وايي. کېدلی شي چې هر څوک يې هرځای له خپل ځان سره وګرځوي. او د اړ تيا په وخت کې ترې کار واخلي.

**لغتونه او معناګانې:**

| | |
|---|---|
| واټن : | فاصله |
| ګوټ : | ګوښه |
| ستونزې : | مشکلات |

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دټيليفون متن ولولي او بيا دې له هر ګروپ څخه يو تن د ټيليفون په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.
- د لاندې کلمو مترادفې کلمې له چوکاټ څخه پيدا او د کلمو تر څنګه يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

۱. اختراع: ____________

۲. بشپړ: ____________

۳. واټن: ____________

| |
|---|
| فاصله |
| پوره |
| نوښت |

- پورتنۍ کلمې په خپلو کتابچو کې وليکئ اوبيا يې په لنډو جملوکې وکاروئ.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ( د ټيليفون، پيغام، نـــړۍ ) کلمــې وليکي او بيا دې په لنډو جملو کې وکاروي.

# دالوتونکو وزرونه





**موخه**: د متن لوستل، ليکل او هم چې زده کوونکي په دې پوه شي چې انسان د مرغـانو د الوتلو له مخې الوتکه جوړه کړه.

## پوښتنې:

۱. ستاسو په نظر که د الوتونکو مرغانو وزرونه نه وای څه کېدل؟
۲. انسانان د الوتکې څخه کومې ګټې اخلي؟

ملالۍ او اسد دواړه د خپل کور په باغچه کې په لوست ويلو بوخـت وو. د مطالعې په وخت کې ناڅاپه د دواړو پام د يوه ښکلي مرغه خواته شو. اسد له ملالۍ څخه پوښتنه وکړه: آيا تر اوسه پورې ستا دې خبرې ته پام شوی چې وزر لرونکي ژوي الوزي؟ ملالۍ وويل: هو! پوهېږمه هغه الوتـونکي چـې وزرونه لري کولی شي چې والوزي.د الوتونکو وزرونه د دوی د جسامت په اندازې لوی او واړه دي. دلويو وزرونو الوتونکي ډېره اوچته الوتنه کوي.

ډېرو لرو سيمو او هېوادونو ته هم تللی شي. ټول الوتونکي ډېر ښکلي هـم دي. خو کاشکې، زه هم الوتونکی وای! چې ډېرې لوړې هوا ته مې الوتـل کولی شوی! اسد په ځواب کې ورته وويل: خورې، لوی خدای (ج) انسانانو ته هسې فکري قوت او پوهه ورکړې ده چې د هغې په مرسته کـولی شـي نوښتونه وکړي.

**هغه وسایل جوړ کړي، چې ډېرو لرو او لوړو ځایونو ته پرې لاړ شي. لکــه څنګه چې انسان وکولی شول د خپلې همدې پوهې په واسطه الوتکه اختراع کړي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په ګروپونو کې متن ولولي او د مطلب په هکله دې یو بل سره خبرې وکړي او بیا دې دهر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د متن په اصلي مطلب دې څرګندونې وکړي.
- زده کوونکي دې نوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او معنا یې کړي.
- واړه، الوتونکی، پوهه ،الوتکه.
- لاندې نیمګړې عبارتونه په خپلوکتابچو کې بشپړ کړئ!

– ملالۍ او اسد دواړه د خپل کور په باغچه کې په درس ویلو ........ .
– د مطالعې په وخت کې ناڅاپه د دواړو پام د یوه ښکلي ....... خواته شو.
– اسد له ملالۍ څخه پوښتنه وکړه: آیا تراوسه پورې ستا دې خبرې تــه پــام شوی دی هرهغه ژوی چې وزرونه لري ........... .
– ملالۍ وویل: هو! پوهېږم چې ټول الوتونکي وزرونه ........... .

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د لوست له متن څخه څلور کرښې په خپله خوښه ولیکي.

نهه څلويښتم لوست

# طبيعي شتمني





**موخه**: د هېواد د اقتصادي شتمنيو پېژندل اودهغو ساتنه، په متن کې د جمعې او مفردو کلمو پيژندل او د دغه متن لوستل او ليکل دي.

## پو ښتنې:

۱. ستاسو په فکر شتمني څه معنا او مفهوم لري؟
۲. د ځنګلونو څخه څه شی په لاس راځي؟
۳. له ځنګلونو څخه کومې ګټې تر لاسه کوو؟

**زموږ د هېواد ځنګلونه، دښتې، غرونه او تېول کانونه د سرو او سپينو زرو نه ډک دي. موږ بايد خپلو درسونو کې زيار وباسو علم او پوهه زده کړو، چې د خپل هېواد له طبيعي شتمنيو څخه په سمه توګه ګټه واخلو او خپل هېواد ودان او سمسور کړو.**

**لغتونه او معناګانې:**

شتمني : دارايي، پانګه
کانونه : معدني زېرمې
پوهه : علم

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره لوست ولولي او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په لاندې چوکاټ کې د جمعو کلمو ترڅنګ مفردې کلمې پیدا اوپه خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

| جمع | مفرد |
|---|---|
| ځنګلونه | ځنګل |
| غرونه | |
| کانونه | |

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې (د ځنګلونه، سیندونه او کانونه) کلمې په لنډوجملو کې وکاروي.

پنځوسم لوست

# کار او طبیعت



**موخه**: چې زده کوونکي د کار د ارزښت او ګټو په هکله پوه شي او د بې کارۍ په زیانونو او بدو پایلو وپوهیږي. اولاندې متن سم ولولي او سم يې ولیکي.

## پوښتنې

۱. آیا د کار او زیار په هکله څه پوهیږئ خبرې پرې کولی شئ؟

۲. کار څه ګټې لري؟

۳. که موږ او تاسې کار ونه کړو پایلې به یې څه وي؟

**خوږو زده کوونکو! ټول انسانان، څاروي او مرغان د خپل پاینښت لپاره شپه او ورځ کار کوي. چې په زیار او هڅو يې د ژوند چارې سمې دي. د مثال په توګه بزګران موږ ته غنم، جوار او داسې نور کــري د همــدغو بزګرانو له برکته زموږ دسترخوان په ډوډۍ او نورو شیانو باندې رنګینه وي. همداراز د مالیار د یوم په برکت باغونه او بڼونه سمسوریږي.**

**نو که چېرې موږ لاس تر زنې کېنو دا خبره څرګنده ده چې له زیان سره به مخامخ شو.**

**هوښیاران وایي: کار وکړئ ځکه چې د بې کارۍ ژوندون ګران دی.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوست له یو بل سره ولولي. څو زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د لوست په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په لوستل شوي لوست کې داسې کلمې پیدا کړي چې لــه درېو او پنځو تورو څخه جوړې شوې وي.

بیا یې په خپلو کتابچو کې هیجا کړي. لکه انسان (ان– سان) جهان (جــ– هان)

- له مفردو کلمو څخه دجمعې کلمې جوړې کړئ!

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| څاروی | |
| کور | |
| بزګر | |

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې له لاندې ګډو وډو کلمو څخه سم بیـــت جوړ کړي.

۱. موږ، ته، غنم، جوار، بزګران، او داسې، کري، نور.

۲. ګران دی، د بې کارۍ، کار وکړئ، ژوندون، څکه چې.

يو پنځوسم لوست

# ورمونه (پندونه)

**موخه:** د ورمونو په معناګانو پوهېدل ، په ژوند کې پرې عمل کول او د متن سم لوستل او سم ليکل دي.

## پوښتنې

۱. ګرانو زده کوونکو! کله مو له چا څخه ورمونه اوريدلي دي؟
۲. له مور، پلار،استاد او نورو مشرانو څخه د ورمونو اوريدل څه ګټه لري؟
۳. ورمونه څه معنا لري؟

**ښه خلک هغه دي، چې نورو ته ګټه ورسوي.**

**پرخپلو ژمنو وفا وکړئ.**

**په دنيا کې ښه عمل، د دين او دنيا کرونده ده.**

**څوک چې خپله ژبه له بدو خبرو څخه ژغوري، په ژوند کې نه پښېمانيږي.**

**څوک چې بل چاته کوهي کيني، خپله په کې لوېږي.**

**د بې فکره او بې تدبيره کار نتيجه خرابه ده.**

**له ښو خلکو سره دوستي کوئ او د بدو خلکو له دوستۍ څخه ځان وساتئ.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره هر یو لوستل شوي ورمونه ولولي اوڅــو نــور زده‌کوونکي دې د ورمونو په مطلب د ټولګي په مخ کــې لنــډې خبــرې وکړي.
- زده کوونکي دې ورمونه په یادو زده کړي او په ښکلي لیک ســره دې پــه خپلو کتابچو کې ولیکي!

## کور نۍ دنده:

- زده کوونکي دې ورمونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په یاد، دې زده کړي.

دوه پنځوسم لوست

# متلونه

**موخه**: د متلونو پېژندل، دهغو په معنا او ارزښت پوهېدل په ورځني ژوند کې د متلونو سم او په ځای کارول، د متلونو لیکل او زده کول دي.

**پوښتنې**:

۱. تاسوله متلونو سره آشنايي لرئ؟

۲. ولې په خپلو خبرو کې متلونه کاروو؟

۳. څوک کولی شي چې متل ووايي؟

**خپل عمل د لارې مل دی.**

**چې څه کرې هغه به رېبې.**

**ژرنده که د پلار ده هم په وار ده.**

**چېرې چې اوسې، په خوی به د هغو شې.**

**له یوه لاس شخه ټک نه خېژي.**

**په یوه ګل نه پسرلی کېږي.**

**مار ته په لستوڼي کې ځای مه ورکوه.**

**خپله ژبه هم کلا ده هم بلاده.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د متلونو متن په لوړ آواز د ټولګي په مخکې ولولئ!
- یو د بل په مرسته لوستل شوي متلونه د املا په توګه ولیکئ!
- په ګروپي توګه د متلونو په هکله خبرې وکړئ او بیا دې د هر ګروپ یــو غړی د ټولګي مخې ته راشي او یو متل دې په شفاهي توګه نورو ته ووایي او په مطلب یې لنډې خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لوستل شوي متلونه په ښکلي لیــک ولیکي او په یاد دې زده کړي.

درې پنځوسم لوست

# د منې موسم



**موخه**: زده کوونکي دمنې موسم وپېژني او په دې وپوهېږي چې بزگران د پسرلي له کار او زیار ځخه د منې په موسم کې گټه اخلي.

## پوښتنې:

۱. ویلی شئ چې منی د کال څووم موسم دی؟

۲. تاسې د منې د میاشتو نومونه ویلی شئ؟

۳. آیا د منې په موسم کې د هوا او دمېوو په هکله معلومات لرئ؟

**منی د کال درېم موسم دی. دا موسم هم درې میاشتې دي. (تله، لړم او لیندۍ) چې د میزان،عقرب او قوس په نامه هم بللی شي. کله چې د اوړي موسم پای ته ورسېږي، د اوړي تودوخه ورو ورو لږه شي او کله چې د تلې د میاشتې لومړۍ ورځ راورسېږي، ورځ او شپه سره برابره شي. هوا نه سړه وي او نه توده. هره خوا سمسوره او په ډول ډول گلانو او د دې موسم په ځانگړي رنگ سره لکه دویم پسرلی رنگینه ښکاري.**

**د منې په موسم کې د هېواد د سړو او تودو سیمو د ونو پاڼې په ژېړیدو پیل کوي او ورو، ورو رژېږي. انگور، ختکي، منې او داسې نورې مېوې پــه دې موسم کې ښې پخېږي او د خوړلو لپاره تیارېږي. یوه برخه یې له هېواد څخه بهر نورو هېوادونو ته هم لېږل کېږي، چې هلته لوی لوی بازارونه لري.**

## د زده کوونکو فعالیت:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د لوست متن ولولي او بیا دې د مني د ګټو په هکله له یو بل سره خبرې اترې وکړي.
- زده کوونکي دې د مني د میاشتو نومونه دچوکاټ په تشو ځایونو کــې پــه خپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې دلاندې کلمو معنا له چوکاټ څخه پیدا کړي او د کلمو تر څنګه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

۱. موسم:__________

۲. تودوخه:__________

۳. رژیږي:__________

| موسم، ګرمي، تویېږي |
|---|

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د مني د مېوو څو نومونه ولیکي.چې په دې موسم کې ښې پخېږي.

څلور پنځوسم لوست

# د ژمي موسم



موخه: د ژمي د موسم پېژندل، د دغه موسم د هوا په ډېر بدلون او سړېدو باندې پوهېدل او د ژمي په يخنۍ کې د ځان ساتنې ذهنيت ور کول دي.

**پو ښتنې:**

۱. په پورتني انځور کې کوم موسم وينئ؟
۲. ويلی شئ چې ژمی د کال څووم موسم او ددې موسم د مياشتو نومونه څه دي؟
۳. خلک د ژمي د رارسېدو لپاره څه تياری نيسي؟

**ژمی د کال څلورم موسم دی. (مرغومی، سلواغه او کب) د ژمي د درې مياشتو نومونه دي، چې ځينې خلک يې د (جدي، دلوې او حوت) په نومونو هم يادوي. په ژمي کې د لمر وړانګې او تودوخه کمزورې وي، هوا ورو ورو سړه شي. ځينو تودو سيمو او ځايونو کې ځينې مېوه لرونکې او بې مېوې ونې لکه د نارنج، سبر، نښتر ا و داسې نورې، چې د ننګرهار، لغمان، کونړ، کندهار، پکتيا په ولايتونو کې ډېرې دي، همېشه شنې پاتې کېږي، په سړو سيمو کې ډېرې واورې او بارانونه اورېږي، خو که په تودو سيمو کې واوره وشي، ژر ويلې کېږي. واورې او بارانونه د کښتونو لپاره ډېرې ګټې رسوي.**

**يومتل دی چې: (کابل بې زرو شه دی نه بې واورو). په کابل او نورو سړو سيمو کې چې د ژمي هوا ډېره سړه شي، نو خلک په خپلو کورونو کې صندلۍ او بخارۍ ږدي او تاوده کالي اغوندي، چې د زياتې يخنۍ له کبله ناروغه نشي. نو هغه خلک چې شتمن دي، ور ته په کار ده چې په دغه موسم کې له بې وزلو خلکو سره د خپل توان په اندازه مرسته وکړي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د ژمي د لوست متن ولولئ او دژمي په هکله له یو بل سره خبرې وکړئ.
- لاندې پوښتنو ته په شفاهي توګه ځوابونه ووایئ؟

- ژمی د کال څووم موسم دی؟
- د ژمي میاشتې په نورو کومو نومونو باندې یادوي؟
- په کومو سیمو کې د نارنج، سبر، نښتر او داسې نورې ونې پیدا کېږي نومونه یې واخلئ؟
- څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ژمي د اړتیاو پـــه هکلـــه دې معلومات وړاندې کړي او بیا دې زده کوونکي د متن له مخې د یو بل په مرسته د امـــلا کار وکړي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د ژمي د میاشتو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.او په لنډو جملو کې دې وکاروي.

پنځه پنځوسم لوست

# د اور ګټې او زیانونه



موخه: د متن لوستل، لیکل، د اور د ارزښت،ګټو او زیانونو په هکله زده کوونکـو تـه معلومـات ورکول دي.

## پو ښـتنې:

۱. ستاسو په نظر اور ګټې لري که زیانونه؟
۲. مورږ په ژوند کې اور ته څه اړتیا لرو؟

په پخوا زمانو کې خلکو اور نه پېژانده. کله به چې لمر لویده او هوا تیـــاره کېده، ټول خلک ویده کېدل، خلکو په هغه زمانه کې د هوا د سړېدو له کبله د غرونو په غارونوکې ژوند کاوه. د ځان د تودولو لپاره یې هېڅ ډول وسیلې نه درلودې.

سابه او دخاړویو غوښې به یې اومې خوړلې. ښایي کومه ورځ به په ناڅاپي ډول د برېښنا او تندر (الماسک) د اور له امله کومې ونې اور اخیـــستی وي او د انسان پام به د هغه رڼا او تودوخې ته شوی وي. یا دا چې ښایي د دوو تېږو د سولېدو په وسیله به اور پیدا شوی وي، خو د هغه وخت انسانانو ترې زده کړل چې څرنګه اور پیدا او بل کړي، اوڅه ډول له اور څخه ګټه واخلي.

د اور موندنه او کشف کول د انسان له ارزښتنا ناکو کارونو څخه شمېرل کېږي. د وختونو په تېریدو سره له اور څخه په ګټو اخیستلو باندې هم پـــوه شول چې د انسانانو د ژوند د بدلون سبب وګرځېده. وروسته یې له اور څخه

**دخوړو د پخولو او د يخنۍ په وخت کې يې د ګرمولو لپاره کار واخيست او د هغه د رڼا څخه يې هم ګټه پورته کړه، خو بايد پام وکړو، چې لـــه اور ســـره هېڅکله لوبې او بې پروايي ونه شي او له ډېر احتياط څخه کار واخيستل شي. ځکه اور په هغه اندازې چې ګټور شی دی. په همغې اندازې خطرناک هم دی، چې بيا د هغه مخنيوی ډېر ګران او له توان څخه لرې خبره ده.**

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- متن په لوړ آواز ولولئ.
- زده کوونکي دې يو بل ته د لوست له مخې املا وواييي او هم د ې د يو بـــل غلطۍ ور په ګوته کړي.
- په ګروپي توګه د اور په هکله خبرې وکړئ او بيا دې له هر ګروپ څخه يو تن د ټولګي مخې ته راشي او په شفاهي توګه دې د اور د ګټو او زيانونو په هکله نورو ته معلومات وړاندې کړي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي او په لنډو جملو کې دې وکاروي.
(اور، کشف، غرونو، رڼا، تودوخه)

# الوتونکي مرغان





**موخه:** دمتن لوستل، لیکل، د الوتونکو مرغانو او د هغو د ځینو ډولونو پېژندل او پـــه ګټو يې پوهېدل دي.



## پو ښـتنې:

۱. تاسو د کومو الوتونکو مرغانو نومونه پېژنئ؟
۲. موږ د کومو الوتونکو له غوښو او هګیو څخه ګټه اخلو؟
۳. کوم الوتونکي په اوبو کې لامبو وهلی شي؟

**ځیني مرغۍ او مرغان الوتونکي دي. چې په هوا کې الوزي، له یوه ځای څخه بل ځای ته تګ راتګ کولی شي، ځیني الوتونکي ټول ژوند په یوه ځای کـــې تېروي، لکه چنچڼې، ښاروګاڼې، زرکې او داسې نورې، خو یو شمېر الوتونکي په ژمي کې تودو سیمو ته کوچ کوي او د اوړي په توده هوا کې بېرته خپلـــو ځایونو ته راځي مرغان ډېر ډولونه لري لکه زاڼې، بازان، باښې او داسې نور چې قوي وزرونه لري په هواکې ډېر جګ او لوړ الوزي. یاد شوي الوتونکي قوي منبوکې او منګولې لري، چې نور مرغان او حیوانات پرې ښکار کوي، نو لـــه همدې امله غوښه خوړونکي مرغان بلل کېږي. یو شمېر مرغان د خپلو پرده لرونکو پنجو په مرسته په اوبو کې لامبو وهي. لکه هیلۍ، بتې، ډېنګ او نور.**

لغتونه او معنا ګانې:

| مېښوکه | : ټونګه |
|---|---|
| منګولې | : پنجې |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلوګروپونو کې متن ولولئ د مرغانو په هکله یو د بل سره خبرې وکړئ او وروسته دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي د مرغانو او دهغو په ګټو دې خبرې وکړي.
- په لاندې چوکاټ کې د ځینو مرغانو نومونه لیکل شوي دي. تاسی یـــوازې د لامبو وهونکو مرغانو د نومونو څخه یوه کړی راتاوه کړئ او بیــا د لانـــدې چوکاټ په شان د هغو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

بازان، بابېې، چنچنې، هیلۍ، بتې، ډینګ

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لاندې جملې د قوسونو په مناسبو کلمو سره ډکې کړي.

۱. ځینې مرغۍ او مرغان الوتونکي __________. (دي، ده)

۲. ځینې الوتونکي ټول کال په یو ځای کې ژوند __________.(تېروي،لري)

اووه پنځوسم لوست

# رښتینی هلک



**موخه:** چې زده کوونکي د انصاف او رښتینولۍ په ارزښت وپوهېږي او په متن کې د مفردواو د جمع کلمو توپیر وکړي او دا متن سم ولولي او ویې لیکي.

**پوښتنې:**

۱. په پورتني انځور کې څه وینئ؟

۲. د شیانو په پلورلو کې انصاف کول ښه کار دی؟

یو هلک په خپل پلورنځي (دوکان) کې د اړتیا وړ شیان خرڅول. یو سړی راغی، دوې هګۍ یې واخیستې. د اخیستونکي فکر نه و، د پینځو افغانیو په ځای یې لس افغانۍ ورکړې او ترې روان شو، هلک پوه شو، چې اخیستونکي ورته د پینځو افغانیو پرځای لس افغانۍ ورکړې،له پلورنځي ووت او ورپسې یې منډه کړه او هغه ته یې وویل: ماما! دا لس ګون در واخله او ته پنځه افغانۍ راکړه، دا ځکه چې زما پینځه افغانۍ پر تا کېږي.

اخېستونکي د دغه هلک له رښتینولۍ او صداقت څخه ډېر خوشحاله شو. نو ورته یې وویل: شاباس! ستا له رښتینولۍ نه ډېر خوښ شوم. الله (ج) دې نېکمرغه لره او دا پنځه افغانۍ دې هم تاته بخشش وي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن ولولئ او بیا د متن په مطلب له یو بل سره خبرې وکړئ.
- د هر ګروپ یو تن دې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست مطلب دې په خپله ژبه ووايي.
- یو بل ته د کلمو او جملو املا ووایاست!
- له مفردو کلمو څخه د جمع کلمې جوړې کړئ.

| مفرد | جمع |
|---|---|
| هلک | هلکان |
| سړی | |
| اخیستونکی | |
| فکر | |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې له لاندې ګډو وډو کلمو څخه یوه جمله جوړه کړي.

(ډېر، خوشحاله شو، اخیستونکی، د دغه هلک له رښتینولۍ څخه)

اته پنځوسم لوست

# دکورنیو چرګانوساتنه



**موخه:**د متن لوستل، لیکل ، دکورنیو چرګو او چرګانو روزنه او د هغو په سمې پالنې او ګټو پوهېدل دي.

**پوښتنې:**

۱. تاسې په کور کې دچرګو او چرګانو د ساتنې سره مینه لرئ او دهغو په سمې ساتنې پوهېږئ؟

۲. د کورنیو چرګانو ښخه کومې ګټې اخلو؟

**عابدې په کور کې چرګې او چرګان ساتلي وو. د هغې چرګې او چرګان ورځ په ورځ خوارېدل، چرګو یې هګۍ نه اچولې،عابده نه پوهېده چې څه وکړي؟ یوه ورځ چې اکا یې شېر محمد  د دوی کورته راغی نوعابده یې خپه ولیده. شېر محمد اکا ور ښخه وپوښتل چې څه خبره ده؟ عابدې ورته وویل: کاکـــا جانه! زما چرګان ورځ په ورځ خوارېږي او هګۍ هم نه اچوي، نه پوهېږم چې څه وکړم؟ هغه ورته وویل: دچرګو اوچرګانو مرغانچه پاکه ساته! ښه او پاک خواړه او اوبه ورکوه! او په خپل وخت یې واکسین کوه، چرګې او چرګان به دې ښه شي، ځکه چې واکسین چرګان له ناروغیو ښخه ژغوري. عابدې دا کار وکړ، هماغه و چې چرګې او چرګان یې غوښن او تندرست شول او چرګې یې په هګیو راغللې، اوس نوعابده خوشحاله ده، ځکه هره ورځ له خپلو چرګــو ښخه هګۍ ټولوي اوبازار ته یې د پلورلو لپاره وړي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن ولولئ او بیا له یو بل سره د کورني چرګانو دګټو په هکله خبرې وکړئ.
- لاندې نیمګړې عبارتونه په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

– عابدې په کور کې چرګان ساتلې.............. .
– دهغې چرګان ورځ په ورځ..................... .
– عابده نه پوهېده چې څه ...................... .
– یوه ورځ چې اکا یې شېر محمد د دوی کورته ............... .
– نو عابده یې خپه ......................... .
– شېر محمد اکا ور څخه وپوښتل چې څه .................. .
– عابدې ورته وویل: چې کاکا جانه! زما چرګې او چرګان ورځ په ورځ خوارېږي او هګۍ هم ...... .
– هغه ورته وویل: د چرګو او چرګانو مرغانچه پاکه ساته! ښه او پاک خواړه او............ .

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې د (چرګان، هګۍ، بازار) کلمې په لنډو جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

نهه پنځوسم لوست

# پرحیواناتو زړه سوی



**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، پر څارویو باندې د زړه سوي درلودل دي.

**پو ښتنې:**

۱. ستاسې په نظر په څارویو باندې زړه سوی ښه کار دی؟
۲. آیا ویلی شئ چې له غوا، آس او چرګانو څخه کومې ګټې اخېستل کېږي؟

خدای (ج) ټول څاروي د انسانانو د خدمت او ګټې اخیستلو لپاره پیدا کړي دي او لوی خدای (ج) د دوی په واسطه د لویو نعمتونو د رالېږلو مهرباني کړې ده. د غواګانو، مېږو او وزو څخه غوښې او شیدې را کوي، د چرګو له غوښو او هګیو څخه نور په زړه پورې خواړه برابر وو. د ځینو نورو څارویو له غوښو، پوستکو او وړیو څخه هم د ژوند نورې اړتیاوې پوره کوو.

بار وړونکي څاروي هم زموږ د ژوند په سمبالولو کې لویه برخه لري. نو په دې ترتیب د انسانانو د ژوند بېلابېلو خواوو د دغو څارویو په دغو ځانګړتیاو سمون موندلی دی. په کار ده چې موږ څارویو ته زیان و نه رسوو او پرې زړه سوی ولرو. یوه پخوانۍ کیسه ده چې وایي: یو سړی چې ډېر ګناهکاره و، یوه ورځ له

**یوه کلي ښځه تېرېده، هلته یې یو سپی ولید چې د تندې له لاسه نږدې دی چې مړ شي.**
**سړي له څاه ښځه اوبه را وایستلې او سپي ته یې ورکړې او هغه یې له مرګ څخه وژغوره لوی خدای (ج) د همدې زړه سوي په خاطر د هغه ګناهکـــار سړي ټولې ګناوې وبخښلې.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن په لوړ آواز ولولئ.
- په ځارویو باندې د زړه سوي په هکله خبرې وکړئ.
- د څو ځارویو د نومونو املا دې یو بل ته ووایي.

## کورنۍ دنده:

– لاندې پوښتنې او ترڅنګه یې دهغو ځوابونه په خپلو کتـــابچو کـــې ولیکئ!

- ○ له غوا څخه څه شی لاس ته راوړو؟
- ○ موږ او تاسې ولې باید پر ځارویو باندې زړه سوی ولرو؟
- ○ سړي څه شی ولید او څه یې وکړل؟
- ○ هغه ګناهکار سړي سپي ته ولې اوبه ورکړې؟
- ○ لوی خدای(ج) له هغه ګناهکار سړي سره څه وکړه؟

شپېتم لوست

# مرغان او د ځالو جوړونه



**موخه:** چې زده کوونکي په دې پوه شي چې الوتونکي هم د خپل نسل د دېربښت او پايښت لپاره خپلو ځانواو بچيو ته ځالې جوړوي، په ځالو کې هګۍ اچوي او خپل بچـــي پـــه کـــې روزي.

## پو ښـتنې:

۱. الوتونکي په پسرلي او اوړي کې څه کوي؟
۲. څه فکر کوئ چې الوتونکي ولې ځالې جوړوي؟
۳. مرغان خپلې ځالې له څه شي څخه جوړوي؟

**کله چې هوا توده شي ونې شنې او د هېواد هره خوا سمسوره شي، الوتونکي د ځالو په جوړولو پيل کوي. ښاروګانې، چنچنې، طوطيان، کارغان او داسې نور مرغان د ونو په ښاخونو، باغونو، ځنګلونو او د ځينو دېوالونو په سوريو او لوړو غرونو کې دخپلوځالو په جوړولو لګياوي،الوتونکي په دښتو، پټيو او د باغونو په شاوخوا کې الوزي واښه راټولوي او په خپلو مښوکو او پښو سره يې يو په بل باندې په ترتيب سره ږدي او په لږه موده کې ښکلې ځاله جوړوي.**

**پوهېږئ چې بيا په ځاله کې څه کوي؟ په خپلو ځالو کې ژوند کوي، هلته هګۍ اچوي او له هګيو څخه څه موده وروسته واړه واړه ښکلي، بچيان راباسي.بيانو**

**د کوچنیو الوتونکو مور اوپلار دوی ته خواړه راوړي، خپلو بچیو ته یې په خوله کې ورکوي، تر څو چې بچې یې لوی شي او والوزي.**
**مورې ته په کار ده چې د مرغانو ځالو ته لاس ورنه وړو، د هغو ځالې ورانې نه کړو او بچیانو ته یې آزار ونه رسوو. ځکه چې د مرغانو بچې هم خپلو میندو او پلرونو ته ګران دي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ بیا د لوست په مطلب له یوه بل سره خبرې وکړئ.
- د لاندې پوښتنو سم ځواب په خپلو کتابچو کې ولیکئ.
  ۱. مرغان چېرې ځالې جوړوي؟
  ۲. مرغان په څه شي کې ژوند کوي؟
  ۳. مرغان چېرې هګۍ اچوي؟ او له هګیو څخه څه شی منځ ته راځي؟
  ۴. مرغان څه شی خوري؟
- زده کوونکي دې د متن له مخې له یو بل سره ځینې کلمې او جملې د املا په توګـــه وکاروي.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه دقوسونو په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

الف: الوتونکي د ځالو په جوړولو پیل ________.          (کوي، کوی).

ب: مورې ته په کار ده چې د مرغانو ځالوته لاس ور نه وړو او د هغو ځالې ورانې ________.  (نه کړو، ورانې)

# ښه کړه وړه



**موخه**: د ښو کړو وړو په ارزښت پوهېدل، له ناوړه چلند څخه ځان ژغورل، د ژوند په چارو کې د ښو کړو وړو غوره کول او په لوست کې د نومونو پېژندل دي.

## پو ښتنې:

۱. په پورتني انځور باندې څوک خبرې کوي؟

۲. آیا د ښې رویې په اړه څه پوهېږئ چې څنګه پایلې لري؟

۳. تاسې له خپلو ټولګیوالو او همزولو سره څه ډول رویه باید ولرئ؟

زرغونه په درېیم ټولګي کې زده کړه کوي. هغه چې پرون د ښوونځي څخه کور ته راغله، ډېره خپه وه، مور یې ترې پوښتنه وکړه: لورې! ولې خپه یې څه پېښه شوې ده؟ زرغونې ورته وویل: درېیم ساعت و، غوښتل مې چې د پښتو د نوي لوست کلمې د ښوونکې له لارښوونې سره سم په خپلې کتابچې کې ولیکم. لاسي بکس کې مې خپل قلم ولټاوه، نه و.

په دې وخت کې مې ورېمې ته پام شو چې زما په قلم باندې لګیا ده لیکنه کوي. هغې ته مې وویل: چې بې له اجازې څخه د چا قلم مه اخله. دا ښه کار نه دی یو ځل ورېمې په ډېره بده رویه قلم راته ګوزار کړ او داسې یې راته وویل: واخله خومره ورېږې یې، خوما د هغې په وړاندې هېڅ ونه ویل ډېره تــرې خپــه او خواشینې شوم. ځکه چې هغې زما د لاسي بکس څخه بې له اجازې قلم اخیستی

و. او د دې پرځای چې له ما څخه بخښنه وغواړي او مننه وکړي. په بد ډول يې قلم راته را ګوزار کړ.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- يو بل سره متن ولولئ!
- لاندې څو کلمې درکړل شوي دي. په کلمو کې نومونه پيدا کړئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ!

خپه- زرغونه- قلم- ليکنه- ورمه.

- زده کوونکي دې د بد چلند په اړه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده:

- لاندې جملې په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ!

○ زرغونه په دريم ټولګي کې زده کړه __________.

○ بې له اجازې څخه د چا قلم __________. دا ښه کار __________.

○ او بې له مننې څخه يې __________.

# د شاتو مچۍ



**موخه:** د شاتو د مچیو روزل او د هغود ګټو او ګډ ژوند په هکله معلومات ورکول اود دغــه لوست سم لوستل او لیکل دي.

## پو ښــتنې:

١. په پورتني انځور کې څه وینئ؟

٢. د شاتو مچۍ مو لیدلې او پوهیږئ چې له هغو څخه څه شی لاس ته راځي؟

**د شاتو مچۍ ډېره ګټوره حشره ده. مچۍ په خپل منځ کې منظم ژوند لري او د دوی د ژوند نظم د نورو ژوو په ګډ ژوند کې نه لیدل کیږي. ځینې خلک د شاتو مچۍ په صندوقونو کې ساتي او د هغو روزنه کوي او ځینې ورته د کور په لوړو دیوالونو کې له ډېروڅخه ځایونه جوړوي.**

**په هر صندوق کې تر څلویښتو زرو مچیو پورې ژوند کوي. د شاتو مچۍ په ګرمو ځایونوکې چې هلته ګل لرونکي بوټي او ګلان ډېر وي په زیاته انــدازه شات ورکوي. په هر صندوق کې یوه ملکه وي چې ښځینه مچۍ ده، نور یې کار ګران او ساتونکي دي د ملکې دنده هګۍ اچول دي، د نورو مچیو دنده د ګلانو څخه د شیرې زبېښل دي چې شات ورڅخه لاس ته راځي، همدارنګــه دکورونو جوړول هم ددوی په غاړه دي او د دوی په وجود کې د شمعې د موم په شان موادشته چې د خپلو کورونو په جوړولو کې ځنې کار اخلي، او خپلو**

**بچيو ته خواږه هم له شاتو څخه ورکوي.زموږ په هېواد کې د مچيو روزلو او ساتلو ته ډېره پاملرنه کېږي. شات د روغتيا لپاره ډېر ګټور خواږه دي چې بدن پياوړی کوي.**

مآخذ: افغان اساسي قابليتونو پښتو لپاره د زده کړي لازمي مواد

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- په ګروپونو کې د لوست متن ولولئ! بيا د شاتو د مچيو د کار، فعاليـــت او ګټو په هکله يو له بل سره خبرې وکړئ. يو تن دې د ټولګي مخې ته راشي او د شاتود مچيو په اړه دې معلومات وړاندې کړي.
- د لاندې کلمو لپاره په چوکاټ کې دوه معناګانې درکړل شوي دي. تاسې يې سمه معنا غوره کړئ او د کلمو تر څنګه يې په خپلو کتابچو کې وليکئ!

شات:__________

ګرم: __________

هېواد:__________

| عسل ، بوره |
| --- |
| سوړ، تود |
| ښار، وطن |

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې (د شات، مچۍ ، ګټور) کلمې په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې وليکي!

# ورېښم څرنګه لاس ته راځي؟





**موخه:** د متن سم لوستل، سم لیکل، د نویو کلمو په معنا پوهېدل او د ورېښمو پېژندل او په ارزښت يې پوهېدل دي.

## پوښتنې:

١. ستاسو په نظر ورېښم څه شی دی؟ او څنګه لاس ته راځي؟

٢. له ورېښمو څخه څه شی جوړېږي؟

ورېښم د ورېښمو له کوچني چینجي څخه لاس ته راځي. په دې توګه چې دا کوچنی چینجی له ځان څخه نازک تارونه تاووي او په همدې نازکو تارونو کې چې د خونې په توګه ورته جوړه شي، ژوند کوي. چې همدې ورېښمني خونې یا غوزې کې د دوو څخه تر درې اونیو پورې پاتې کېږي. او په همدغه وخت کې ورو ورو الوتلو ته تیارېږي. چې په پای کې د ورېښمو خونه سوری کوي او له هغې څخه بهر راوزي او هګۍ اچوي چې له دې هګیو څخه نور دورېښمو چینجي پیدا کېږي، د ورېښمو د چینجیو خواړه د توت پاڼې دي.د ورېښمو د لاس ته راوړلو په خاطر دا غوزې په مناسبو او تودو ځایونو کې ساتي چې د ورېښمو چینجي له وتلو او یا د پیدا کېدو څخه مخکې مړه نه شي

**وروسته بيا د وربښمو غوزه چې په اصل کـــې يـــو اوږد تـــار دی، ورو ورو خلاصوي.**

**دا تارونه په خاص مهارت سره تاووي او له هغې څخه د وربښمو ټوکر او نور شيان چې ډېرارزښتناک، کلک او کم پيدا کېږي جوړوي چې دغه وربښمين شيان د نړۍ په ټولو بازارونو کې خپل ارزښت لري.**

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- زده کوونکي دې متن په لوړ اومناسب آواز ولولي.
- د وربښمو په اړه دې معلومات ورکړي.
- لاندې کلمې په خپلو ګروپونو کې هېجا کړئ!

(وربښم– تارونه– هګۍ– ټوکر)

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې دا کلمې په لنډو جملوکې وکاروي او بيا دې په خپلـــو کتابچو کې وليکي. ( وربښم، تارونه، هګۍ، ټوکر )

# روغه جوړه



**موخه:** د متن لوستل، لیکل د شخړو او لانجو څخه ځآن ساتل او د روغې جوړې په ارزښت او ګټو پوهېدل دي.

**پوښتنې:**

۱. تاسو د روغې جوړې په هکله څه اورېدلي دي؟
۲. د تاسو په فکر روغه جوړه موږ ته څه ګټې لري؟

یوه ورځ اجمل له خپل ورور ختیک سره د لوبو کولو په وخت کې په شخړه شو، یو د بل په وهلو او ټکولو یې پیل وکړ، چې ناڅاپه یې پلار کور ته راغی، ګوري چې دواړه په جګړه اخته دي، پلار یې دوی سره خلاص کړل. اجمل له ختیک څخه مشر و، پلار یې داسې ترې وپوښتل: زویه! په څه شي باندې دې له ختیک سره لانجه وه؟ اجمل وویل:« پلار جانه! ده زما توپ واخیسته او بېرته یې نه راکاوه، هرڅومره مې چې ورته وویل، توپ زما دی، خو نه یې منله، اړ شوم چې توپ ترې په زوره واخلم، خو ختیک په ما ګوزارونه وکړل، ما هم پرې ګوزارونه وکړل.» پلار یې چې د اجمل خبرې واورېدې بیا یې داسې ورته وویل:« زویه! ته خو مشر یې باید په خپل کشر ورور ډېره مهرباني ولرې. همدارنګه ختیک چې له تا نه کشر دی باید ستا د مشر توب درناوی په پام کې ونیسي. په پای کې یې داسې وویل: کوښښ وکړئ چې په لوبو کې له یوبل سره په هیڅ شي بې ځایه شخړه او لانجه ونکړئ ځکه شخړې او لانجې د خپګان سبب ګرځي.»

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لوست متن په لوړ آواز ولولئ!
- د لاندې چوکاټ ضد کلمې د کرښې په وسیله په خپلو کتابچو کې ونښلوئ!




- د لاندې جملو تش ځایونه د قوسونو په مناسبو او سمو کلمو سره په خپلو کتابچو کې ډک کړئ.
  - یوه ورځ اجمل له خپل ورور خټک سره د لوبو کولو په وخت کې په ________ شو. (شخړه– جګړه)
  - چې ناڅاپه یې پلار کور ته ________. (ورغی– راغی)

## کورنۍ دنده:

- لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په لنډو جملو کې یې وکاروئ.
(شخړه– روغه جوړه– مشر)

# د زرد آلو زړی

**موخه**: د زده کوونکو د لوستلو اوليکلو مهارتونو ته وده ورکول او ددې کيسې په موخې پوهېدل دي.

**پو ښتنې**:

۱. په انځورکې څه وينئ؟
۲. زرد آلو په کوم موسم کې پیداکېږي؟
۳. په اوړي کې کومې ،کومې ميوې پخيږي؟



يوه ورځ يو هلک په لار کې زردالو خوړل او زړي يې غورځول. يوه زوړ بزګر چې هلته پــه خپل پټــي کې په کار بوخت و، زړي يې راټول کړل او د لارې په څنګ کې يې تــر خــاورو لاندې ښخ کړل. هغه هلک د بزګر دا کــار وليد. خو څه يې ونه ويل او خپله لاره يې ونيوه.

څو کاله وروسته هلک له هغه ځايه تېرېده ګوري چې د زړي په ځای يو ښــه نيالګی شين شوی دی.بزګر يې په اوبو ورکولو لګيا دی. له دې خبــرې نــه څوکاله نور هم تېر شول. دا هلک چې ځوان او زلمی شوی بيا له همدغه ځای څخه تېرېږي. ګوري چې د زردآلو ونې خورا ډېرې مېوې نيولې دي. خو هغه بزګر هلته نشته ځوان هلک د دې ځای له ګاونډيانو او خلکو څخه د هغــه پوښتنه وکړه، خو داسې څرګنده شوه چې څه موده مخکې هغه مړ شوی دی. ځوان د زردآلو ونې ته ورنږدې شو دوه دانې يې ترې راوشکولې او هغه سپين ږيري بزګر ته يې دعاګانې وکړې، چې د زرد آلو د زړو يې دومره روزنه کړې وه. خو دا ځلې په خپله ده هم د زردآلو زړي ونه غورځول او په خپله باغچه کې يې وکرل.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې لوست ولولئ او په مطلب یې له یو بل سره خبرې وکړئ!
- د لاندې جملو تش ځایونه د قوسو په لیکل شوو مناسبو کلمو ډک کړئ!

– یوه ورځ یوه هلک په لار کې زرد آلو ______.        (خوړل، مینځل)

– یو زوړ بزګر چې هلته په خپل پټي کې په کار بوخت و، زړې یې را تېـر ـول ______ او دلارې په څنګ کې یې تر خاورو ______ ښخ کړل.

(خوړل – مینځل – کړل – لاندې)

## کورنۍ دنده:

– زده کوونکي دې لوستل شوې کیسه په یادو زده کړي او په بله ورځ دې نوموړي کیسه نورو ته ووایي.

شپږ شپېتم لوست

# زيار او هوسايي

**موخه**:د ګډې مرستې په ارزښت او ګټو پوهېدل، ددې کېسې سم لوستل او ليکل دي.

**پوښتنې**:

۱. هغه کسان چې له يو بل سره په کارونوکې مرسته کوي نتيجه به يې څنګه وي؟

۲. آيا تاسې هم يو د بل سره مرسته او همکاري کوئ؟

په يوه ځای کې دريو ملګرو (ايمل، ميرويس او خوشحال) سره ګډه ژوند کاوه. يوه ورځ ايمل چې څه غنم درلودل فکر يې وکړ، که د غنمو داني وکرم، نو ډېرغنم به لاس ته راشي، دا کار يې خوښ شو. د غنمو په کرلو کې يې له خپلو ملګرو نه مرسته وغوښتله. هغوی وويل: (موږ خپل کارونه كوو مرسته نشوكولی) ايمل غنم وکرل، غنم شنه شول، د پخېدو څخه وروسته يې بيا د غنمو په لو، درمند کولواو پاکولو کې مرسته وغوښته، ملګرو يې بيا ورته وويل(موږ خپل کارونه کوو، بې کاره نه يو، مرسته هم نشو در سره کولی) ايمل بيا خپل زيار او همت ته دوام ورکړ.

غنم يې وريبل، درمند يې کړل کورته يې هم راوړل د اوړو کولو، او د ډوډۍ د پخولو په وخت کې يې هم له هغوی څخه مرسته وغوښته. بيا هم هغوی د ايمل سره مرسته ونه کړه. کله چې ايمل ډوډۍ پخه کړه، نو ويې ويل: (څوک زما سره ډوډۍ خوري؟) دوی دواړه په منډه راغلل. ويې ويل: چې موږ به درسره د ډوډۍ په خوړو کې مرسته وکړو.

دوی چې ډوډۍ خوړلو ته ځانونه تيار کړل. ايمل ورته وويل، د کرلو، لوکولو، درمندولو، پاکولو او پخيدو په وخت کې چېرې وئ؟ ډوډۍ چې تياره شوه تاسې يې خوړلو ته راغلئ. د تيار خورو وخت تېر دی. هر څوک بايد کار وکړي. د خپل کار او زيار ګټه دې وخوري او د نورو د اوږو بار دې نه شي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن ولولئ بیا د لوستل شوي متن د مطلب په اړه د کیسې په توګه یو له بل سره خبرې وکړئ!
- د کرښې د نښلولو په واسطه په لاندې چوکاټ کې له تورو څخه په خپلو کتابچو کې بشپړې کلمې جوړې کړئ!




## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لوستل شوې کیسه په یاد زده کړي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

اوه شپېتم لوست

# لیک نښې

: ؟ ! ، .

**موخه**:د لوست په متن کې د لیک نښو پېژندل، هغو ته پوره پاملرنه او د متن لوستل او لیکل دي.

## پو ښتنه:

۱. په پورتنې چوکاټ کې د لیکلوکومې نښې نښانې پېژنئ؟

شارحه (:) - سوالیه (؟) - ندایه (!) - کامه (،) - ټکی(.)

د لاندې متن د هرې جملې په آخر کې د غه لیک نښې وګورئ!

**مورې او تاسې هره ورځ بوره خورو. بوره په خوراکي شیانو کې لکه کلچې، روټونه، حلوا، خوږې ډوډۍ او نوروکې کارول کېږي.**

**ګرانو زده کوونکو! پوهېږئ چې بوره څه ډول لاس ته راځي؟**

**بزګران، لومړی ځمکه یوې کوي او په هغه کې د لبلبو او د ګنیو (ګنډېریو) تخم کري. د څو میاشتو څخه وروسته بیا لبلبو او ګني پخېږي، بزګر لبلبوله ځمکې څخه راباسي او د ګنډېریو بوټــي ربېي او بیا یې د بــورې جوړولــو فابریکې ته وړي.**

**لبلبو ښه پرېمنځي او له هغه وروسته یې دماشینونو په واسطه میـــده کـــړي. اوبه لویو دېګونو کې یې ښه وایشوي چې ټول اوبه شي. له هغې وروسته پـــه ماشینونو کې ورته څرخ ورکوي چې په دې وخت کې یې رنګ لړلړ سپینېږي**

**او په پای کې په سپین رنګه پوډر بدلېږي بيا يې له ماشينونوڅخه راوباسي کله چې وچه شوه بيا يې د پلورلو لپاره بازارونو ته وړي.**

## د زده کوونکو فعاليتونه:

- په خپلو ګروپونو کې متن په ګډه سره ولولئ!
- لاندې جملې په خپلو کتابچو کې وليکئ او د هرې جملې په پای کې مناسبې ليک نښې وکاروئ!

الف: موږ او تاسې هره ورځ بوره خورو

ب: بوره په نورو خوراکي شيانو لکه کُلچې رُوټ حلوا او خـوږه ډوډۍ کـې کارول کېږي او له هغه څخه ګټه اخلو

ج: ګرانو زده کوونکو پوهېږئ چې بوره څه ډول لاس ته راځي

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې لاندې لنډې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې ليک نښې (؟ ! : ، ٠ ) د جملو په پای کې سمې وکاروي.

١. زه هر سهار بوره خورم

٢. ته هر سهار بوره خورې

٣. ګرانو زده کوونکود لبلبوڅخه کوم شيان جوړېږي

٤. بوره په نورو شيانو لکه حلوا روټ کلچوکې کارول کېږي

اته شپېتم لوست

# ساده کلمې

**موخه**: دمتن لوستل، ليکل دکلمې پېژندل، په معنا اوتعريف يې پوهېدل او په سمه توګــه د هغې کارونه ده.

**پو ښـتنې**:

۱. ويلی شئ چې کلمې له څه شي څخه جوړېږي؟

۲. د کلمې په مفهوم او تعريف باندې پوهېږئ؟

**کلمه**: هر معنا لرونکی لفظ چې زموږ له خولې څخه ووځي کلمــه بلــل کېږي. لکه احمد، محمود، قلم، کتاب، ميز.
کلمې له تورو او تورې له غږونو څخه جوړېږي. همدا رنګه د کلمـــو لـــه يوځای کېدو او ترتيب څخه جملې جوړېږي او د جملو له يو ځای کېـــدو نثرونه، نظمونه او شعرونه جوړېږي.

زموږ کور په ښار کې دی. زه هره ورځ خپل ټول درسي مـــواد ( تـــوکي ) لکه کتاب، قلم او کتابچه پخپل لاسي بکس کې ږدم او ښوونځي ته روانېږم. زموږ ښوونځی په ډېر ښه ځای کې دی. لوی او ښکلی چمـــن هـــم لـــري زده کوونکي د تفريح په وخت د ښوونځي په ميدان کې سپورتي لوبې کوي. زه په ټولګي کې خپل ميز او څوکۍ پاک ساتم. د زده کړې په وخـــت کـــې د ښوونکي خبرو ته غوږ نيسم. د پښتو د درېم ټولګي کتابونه چې د ښوونځي د اداري له خوا ماته راکړل شوي دي، هغه ښه ساتم. او پوښ ورته ورکوم. چې خيرې نه شي کله چې لوست پای ته ورسېږي د ترانې په ويلـــو ســـره مـــوږ رخصتېږو او د کور په لور روانېږو.

لغتونه او معناګانې:

| | |
|---|---|
| غږونه : | آوازونه |
| توري : | حروف |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لوست متن روان او سم ولولئ. او بیا په هغه کې ساده کلمې ورپه ګوته کړئ !
- په خپلو ګروپونو کې څو ساده کلمې ولیکئ!
- د لاندې چوکاټ کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروئ!

| | |
|---|---|
| ټولګی | کتابچه |
| فوټبال | څوکۍ |
| میدان | مېز |
| قلم | کتاب |

## کورنۍ دنده:

- لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په جملو کې یې وکاروئ!
(مېز، څوکۍ ، تخته، قلم، کتابچه)

نهه شپېتم لوست

# مرکبې کلمې

**موخه:** د مرکبو کلمو پېژندل، له مفردو کلمو څخه دهغو توپیراو په لوستلو او لیکلو کـــې یې سم کارول دي.

## پوښـتنې:

۱. آیا تاسو مرکبې کلمې پېژنئ؟

۲. مرکبې کلمې څه ډول کلمې دي څوک به په دې اړه کوم مثال ووایي؟

**مرکبې کلمې : هغو کلمو ته وایي چې له دوو یا زیاتو خپلواکو کلمو څخـــه جوړې شوې وي. لکه میرویس میدان، انارګل، ورځپانه او نور...**

**په لاندې جملو کې مرکبې کلمې په نښه اوښه ورته ځیرشئ!**

**۱. بادام ګل خپلې مور ته یو ټیکری واخیست.**

**۲. سرتور ښکلی پیل مرغ لري.**

**۳. اجمل نوي ښار ته لاړ.**

**۴. سپین بولدک د کندهار په ولایت کې دی.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوست په مناسب آواز ولولي.
- زده کوونکي دې له یو بل سره د مرکبو کلمو په معنا او تعریف خبرې وکړي

  او د هغو لنډ تعریف دې په یاد زده کړي. او په کلمو کې دې مشق او تمرین وکړي.
- له لاندې کلمو څخه مرکبې کلمې په نښه او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

  سپین غر، ګل غوټۍ، بادام ګل، سره بانجان، توربانجان، قلم، کتاب.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو مرکبې کلمې ولیکي.

اوياوم لوست

# ورروستاړي

تون، والي، جن، ان، مند، من ،تيا،توب

**موخه**: د ورروستاړو لرونکو کلمو پېژندل او په لوستلو او ليکلو کې يې سم کارول دي.

## پو ښتنې:

۱. په پورتني چوکاټ کې څه ليکل شوي دي؟ څوک يې لولي؟
۲. د ورروستاړي په هکله کولی شئ څه ووایاست؟

**ورروستاړي هغه نا خپلواکې کلمې دي چې د خپلواکو کلمو په پای کې ورسره يو ځای کېږي او د کلمو معنا بدلوي.**

**۱. پيغلې او ځوانان په پوهنتون کې زده کړه کوي.**
**۲. د اخک پلار جبار خان اکا هيرجن سړی نه دی.**
**۳. زموږ خلک د سولې پلويان دي.**
**۴. انځرګل ډېر ښه هنرمند دی.**
**۵. خوشحال بابا ډېر قدرمن سړی و.**
**۶.د زلميتوب وختونه په بې پروايي کې مه تيروئ!**
**۷. سيد جمال الدين افغان په خپلو ليکنو کې پوره ورړتيا ښودلې ده.**
**۸. د امير کرور پياوړتيا د ده له شعرونو څخه څرګنديږي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- د لوست متن په چوپه خوله له ځان سره ولولئ!
- څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په لیکل شوو جملو کې دې د وروستاړي لرونکي کلمې ور په ګوته کړي.
- مشق او تمرین:
- لاندې جملې ولولئ او وروستاړي لرونکي کلمې پکې پیدا کړئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

ـ ربنتین والی د انسان ښه صفت دی. (ربښتین والی)

ـ بډای خلک په ژمي کې وړین کالي اغوندي.

ـ د بریالي خور په روغتون کې بستر ده.

ـ له درواغجن سړي سره څوک ناسته او ولاړه نه کوي.

ـ جمال ښه انځورګر او هنرمند ځوان دی.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې د (تون، والي، جن، ان، مند، من) وروستاړي په کلمو کې وکاروي.

# مختاړي

نا، بې، با، هم

**موخه:** د مختاړو پېژندل، د مختاړو لرونکو کلمو پېژندل او په لیکنو او لوستنو کې د هغــو سمه کارونه ده.

## پو ښتنې:

۱. پورتني چوکاټ کې څه لیکل شوي دي؟
۳. تاسې د مختاړو په هکله څه ویلی شئ؟

**مختاړي هغه نا خپلواکي کلمې دي چې د خپلواکو کلمو په سرکې ور ســـره نښلول کېږي.او د کلمې د معنا د بدلون سبب ګرځي. لکه پوه، ناپوه، ځای، بې ځای، ادب، با ادب، کار، همکار.**

**۱. نا پوه سړی لکه ړوند وي.**
**۲. بې ځایه خبرې کول ښه کار نه دی.**
**۳. سرتور یو با ادبه هلک دی.**

لغتونه او معناګانې:

| ناخپلواکه : | نامستقله |
|---|---|
| بدلون : | تغییر |

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- لوستل شوی متن دې په لوړ آواز سره ولولي.
- زده کوونکي دې یو د بل سره د مختاړي مثالونه مشق او تمرین کړي.
- په لاندې جملو کې مختاړي پیدا او په نښه یې کړئ بیا یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

۱. زه بې کاره نه یم. لکه ( بې کاره ) په مثال کې

۲. دا خواړه ډېر بې خونده دي. ( بې ) مختاړی دی.

۳. د ناروغ پوښتنه ثواب لري.

## کورنۍ دنده:

- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې څو مختاړي لرونکي کلمـــې ولیکي.

دوه اویایم لوست

# عبارت او جمله

موخه: د عبارتونو پېژندل، د عبارتونو او جملو په توپیرونو پوهېدل دي.

**پو ښتنې:**

۱. عبارت څه ته وايي؟

۲. څوک کولی شي د عبارت یو مثال ووايي؟

| **جمله او عبارت: هغه یوه یا څو کلمې چې له یو ځای کېدو څخه یې بشپړ مفهوم واخیستل شي جمله بلل کېږي او که څو کلمې سره یوځای شي او پوره معنا ور نه کړي عبارت دی.** |
| --- |

**لاندې جملو ته ځیر شئ اوعبارتونه په کې وګورئ!**

- **زه هر سهار د شیدو چای څښم.**
- **زلمی پرون د غزني ښار ته نه و تللی.**
- **د ړندو سره هر ډول مرسته کول ښه کار دی.**
- **د علم زده کړه په هر مسلمان نارینه او ښځې فرض ده.**
- **د ښوونځي میدان.**
- **د احمد پلار.**

پورتنو لیکنوکي څلور کرښې جملې او وروستۍ دوه کرښې عبارتونه دي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- متن دې روان او سم ولولي.
- دجملې تعریف له یاده زده کړئ.
- لاندې جملو کې تش ځایونه دچوکاټ په مناسبو او سمو کلمو سره ډک او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

| |
|---|
| شخړه |
| سولې |
| عزت |
| روغتیا |
| مرسته |
| خلکو |

دا دخپلې مور سره په کارونو کې ______ کوي.

ښه زده کوونکي له یو بل سره ______ نه کوي.

سګرټ او نسوار ______ ته زیان رسوي.

افغانان د ______ غوښتونکي دي.

هر انسان خپل ______ لري.

د چاپېریال ساتنه د ______دنده ده.

## کورنۍ دنده:

- د لاندې جملو تش ځآیونه په مناسبو کلمو سره ډک او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

ټول افغانان سره ______دي.

د سګرټو او نسوارو کارول ______ته زیان رسوي.

ملالۍ دکور په کارونو کې ______کوي.

نجونې او هلکان په ښوونځي کې ______وايي.

درې اویاوم لوست

# جمله

**موخه:** دجملو پېژندل او په معنا او مفهوم یې پوهېدل.

## پوښتنه

۱. جمله څه ته وايي؟

**جمله: یوه یاڅو کلمې چې بشپړه معنا او مفهوم ورکړي جمله ګڼل کېږي لکه: افغانستان په موږ ګران دی.**

**په پورته جمله کې افغانستان په موږ ګران دی معنا ورکوي او جمله بلل کېږي.**

## د زده کوونکو فعالیتونه:

- لاندې جملې او عبارتونه ولولئ او له یو بل څخه یې توپیر وکړئ او هر یو یې په خپل کتار کې ولیکئ.
- زه خوشحاله، شریف زما ټولګیوال دي، پاکوالی د ایمان یوه برخه ده، زه پاک خواړه خورم، اجمل ښوونځي ته، ابمل کتاب، سپوږمۍ لیک.

## کورنۍ دنده:

په خپلو کتابچو کې پنځه جملې او پنځه عبارتونه ولیکئ.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا        وطن ته موښکلا
کتاب او قلم        زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان        له تانه شم قربان
ته وينه دافغان        ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد        وطنه ته شې ښاد
مونږه سربښندوپه تا        اوساتو دې آزاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مې ګور        ته پلارېې هم مې مور
ته زړه دآسيا        او زما دسترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا        او تاج يې ديما
ځاربېږمه له تا        افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعين مرستيال